

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هيواد به تل ځليږي
په سينه کې د آسيا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی يې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پاميريان، نورستانيان
هم ايماق، هم پشه يان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاويدان
وايو الله اکبر وايو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم




د پوهنې وزارت

# جغرافیه

## یوولسم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ . ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** جغرافیه

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د جغرافیې دیپارتمنت د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** یوولسم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# لړلیک

## په دې څپرکي کې لولو:

کرنه او مالداري

• کرنه او د هغې اقتصادي ارزښت
• د کرنې لارې چارې

ـ پخوانۍ طریقې
ـ د کرنې پرمختللې او عصري طریقه
ـ مهم کرنیز تولیدات
ـ د کرنې جغرافیایي وېش

• د مالدارۍ او د هغې اقتصادي ارزښت
• د مالدارۍ لارې چارې

ـ لرغونې او دودیزې طریقې (لارې ـ چارې)
ـ عصري او پرمختللې طریقې

• وحشي ژوي
• د کرنې او مالدارۍ د حالت کتنه

## د څپرکي عمومي موخې:

**زده کوونکي به د دغه څپرکي په لوستلو سره لاندېنيو پوهنيزو موخوته ورسيږي:**

- د کرنې په اقتصادي ارزښت به وپوهيږي.
- د کرنې بېلا بېلې لارې چارې به بيان کړای شي.
- د کرنې د نوو لارو  چارو په اغيزمنتوب به پوه شي.
- د هېواد د کرنيزو توليداتو له اندازې څخه به خبر شي.
- د هېواد د  کرنې په جغرافيايي وېش به وپوهيږي.
- د مالدارۍ پر اقتصادي اهميت به وپوهيږي.
- د هېواد له کورنيو څارويو او د هغو له وېش څخه به خبر او نورو ته به معلومات ورکړای شي.

**زده کوونکي به د دغه څپرکي په لوستلو سره لاندېنيو مهارتي موخو ته ورسيږي:**

- د هېواد د کرنې اقتصادي اهميت به بيان کړای شي.
- د کرنې بېلا بېلې لارې چارې به تشريح کړای شي.
- د کرنې د نويو لارو چارو د اغيزمنتوب دلايل به وويلای شي.
- د مالدارۍ اقتصادي اهميت به بيان کړای شي.
- د هېواد د کورنيو څارويو ډولونه به بيان کړای شي.
- د نقشې پرمخ د کرنيزو بيلابيلو ونو، بوټو (نباتاتو) د کرنې ساحې به وښيي.
- د نقشې پرمخ د هېواد د کورنيو څارويو د ساتنې ساحې به تثبيت کړای شي.
- د هېواد د مالدارۍ ستونزې به نورو ته وويلای شي.

## لومړی لوست

# ۱، ۱ کرنه او د هغې اقتصادي ارزښت



۱- شکل په افغانستان کې د ځمکې د کولبې (یوې) او کرنې عنعنوي لارې چارې

د کرنې د حیاتي او اقتصادي ارزښت په هکله څومره پوهیږئ؟

کرنه: زموږ د هېواد د ملي اقتصاد یوه مهمه او بنسټي برخه ده او د هغې ځینې حاصلات، لکه: مېوې، زعفران او نور د صادراتو او عایداتو لویه سرچینه جوړوي.

له تاریخي پلوه د کرنې خوراکي توکي له ډېر پخوا څخه د انسانانو د استفادې وړ گرځېدلي دي.

کرنه او مالداري زموږ د زیاتره خلکو کار او دنده ده. کرنیز حاصلات نه یوازې دا چې د وگړو د لومړنیو اړتیاوو په پوره کولو کې ارزښت لري، بلکې د سپکو صنایعو او خوراکي توکو په پرمختیا او د ملي اقتصاد په پیاوړتیا کې ورڅخه استفاده کیږي. د ځینو کرنیزو حاصلاتو له خرڅلاو څخه د یوشمېر اړتیاوو د پوره کولو په خاطر د پیسو عواید ترلاسه کیږي.

کرنه د حبوباتو، سبزیجاتو او لومړنیو نباتي موادو د تخمونو د کرلو او شیندلو لپاره دځمکې له تیارولو څخه عبارت دی چې له اقلیم، مساعدو اوبو او خاورې سره په توافق د دودیزې او یا معاصرې تکنالوژۍ د وسایلو په واسطه په آبي او للمي ډول سرته رسیږي او د کال په بېلا بېلو فصلونو کې له ځمکې څخه مطلوب حاصلات اخلي. زموږ په کرنیز هېواد افغانستان کې بېلا بېلې

غلې دانې، ډول ډول مېوې، صنعتي او غوړلرونکي بوټي، بيلابيل سابه، واښه (شوتله او ريشقه)، يو شمېر طبي بوټي لکه زعفران او نور کرل کيږي.

هغه لاملونه چې د کرنيزو توليداتو په څرنګوالي باندې اغېزه لري، فزيکي، ټولنيز، اقتصادي او سياسي لاملونه دي. د خاورې څرنګوالی، د ځمکې جوړښت او بڼه، اقليم او د اوبو سرچينې فزيکي لاملونه بلل کيږي چې د کرنيزو حاصلاتو په څرنګوالي او څومره والي پوره اغيزه لري.

د ژمي د واورې اورښت او پسرلني بارانونه د لوړو سيمو او د غرونو د لمنو د خاورو لرونکو طبقو په لنده بل کې ګټور او د ونو - بوټو په وده او د هغو د ريښو په پياوړتيا په تېره د للمي غنمو په زياتوالي کې اغيزه لري.

د افغانستان د کرنې يوه برخه دوديزه او بله برخه يې پرمختللې بڼه لري. په ټولنيزه توګه د افغانستان د ټولې کرنيزې ځمکې ۷.۹ ميليون هکتاره ځمکه تر کرنې لاندې ده، چې له هغې جملې څخه ۵.۳ ميليونه هکتاره يې د خړوبولو وړتيا لري، خو د اوبو د کمښت له کبله هر کال د هغو يوازې ۲.٦ ميليون هکتاره خړوبيږي.

### د ټولګي دننه فعاليت:

زده کوونکي دې دوه ډلې شي، لومړۍ ډله دې د کرنيزو بوټو او د هغو د حياتي ګټو په هکله او دويمه ډله دې زموږ په هېواد کې د کرنې د اقتصادي ارزښت په هکله بحث وکړي او د هرې ډلې استازی به د خپل کار پايله په ټولګي کې ووايي.

### پوښتنې

۱- کرنه څه ډول فعاليت دی تعريف يې کړئ.

۲- کرنه څه اقتصادي اهميت لري؟ توضيح يې کړئ.

۳- غنم څو ډوله کرل کيږي؟

### له ټولګي څخه بهر فعاليت:

زده کوونکي دې له کتابتون يا کومې بلې علمي سرچينې څخه په استفادې د خپل هېواد د کرنې د اقتصادي ارزښت په اړه يوه پاڼه معلومات راټول او خپلو ټولګيوالو ته وړاندې کړي.

دو یم لوست

## ۲،۱ د کرنې لارې چارې



۲- شکل په افغانستان کې د ځمکو اوبه کولو لارې- چارې چې زیاتره په غیر فني او نا منظمه توګه ترسره کېږي

په افغانستان کې د کرنې لارې چارې په څه ډول دي؟

زموږ په هېواد کې له ډېر پخوا راهیسې کرنه په دودیز ډول، په ځارویو باندې یوې کول غېر فني او درانه کارونه د بزګر په مټ پر مخ وړل کېږي، خو د هغې لږ حاصل زموږ د هېواد د ورځ په ورځ زیاتېدونکي نفوس لګښت نه پوره کوي، نو ځکه هر کال یوه زیاته اندازه غله له بهر څخه واردېږي. د افغانستان کرنه په عمومي توګه په پخوانیو او نوو طریقو او لارو چارو ترسره کېږي چې په لنډ ډول یې توضیح کوو:

**الف ـ پخوانۍ طریقه**:

د افغانستان دغه ډول کرنه زیاتره دودیزه کرنه ده چې موخه یې یوازې د بزګرانو د اړتیا پوره کول دي.

څرنګه چې په دودیزه کرنه کې د بزګر د کورنۍ د لومړنیو خوراکي توکو چمتو کول د لومړنیو اړتیاوو څخه ګڼل کېږي، نو ددې موخې لپاره په سلوکې له ٦٠ څخه تر ٨٠ پورې ځمکې او کار د غلې ـ دانې د حاصل لپاره ځانګړې شوې دي په دودیزه کرنه کې ځمکه، د کار ځواک، کرنیز وسایل او تخم په لومړنۍ بڼه وي چې ټول د بزګرانو له خوا چمتو کېږي. بزګران خپل ډېره لږه اندازه تولید شوی حاصل بازار ته وړاندې کوي چې د هغو په پیسو خپلې اړتیاوې پوره کوي. عنعنوي بزګران په په ټولنیزه توګه د خپلو تولیداتو په سلوکې تر ٥٠ پورې په بازار کې پلوري.

د دولتي احصائیو له مخې د غذایي توکو په توګه د هر افغان وګړي د غنمو لګښت په یوه کال کې ١٦٢ کیلو ګراموته رسیږي. له دې امله زموږ د هېواد د غلې حاصلات د خلکو اړتیا نه پور ه کوي، نو ځکه په ځینو ولایتونو کې کچالو د غلې ځای نیسي چې د تولید اندازه یې له ٥٠٠ ټنو څخه تر ٢٥٠٠٠ ټنو پورې زیاته شوې ده، همدارنګه یوه زیاته اندازه غله له بهر څخه واردېږي.

**ب ـ د کرنې پرمختللې او عصري طریقه**:

په پرمختللې او عصري کرنه باندې د وروسته پاتې عنعنوي کرنې د بدلولو لپاره د شرایطو او اسانتیاوو

د برابرولو په خاطر لاندې امکانات بنسټي رول لري:
مواصلاتي کرښې او د لېږد را لېږد وسایل، برېښنا، د اوبو لګولو سیستم، بازار موندنه، اړیکې، کرنیز اصلاح شوي تخمونه، سره، د ونو ـ بوټو د ناروغیو او افاتو ضد دارو، کرنیز ماشینونه، د څېړنو، ترویج او د نباتاتو د ساتنې خدمتونه او نور.

د عصري او پرمختللې کرنې نورې ځانګړتیاوې دا دي چې کرنیزه ښیګڼه رامنځ ته کوي او له لږې ځمکې څخه ډېر حاصل په لاس راوړي.

د عصري کرنې په لارو ـ چارو کې کرنیز ماشینونه په کار کې اسانتیا راولي او د تولید اندازه لوړوي.

د بندونو جوړول او د ویالو کیندل، د ژورو څاګانو ایستل او د پراخو شاړو ځمکو تر کرنې لاندې راوستل د تولیداتو د زیاتیدو او په خپل ځان د هېواد د بسیا کیدو لامل کیدای شي.

د عصري پرمختللې او دودیزې وروسته پاتې کرنې د ځانګړتیاوو لنډیز په جدول کې ښودل شوي دي:

| عنعنوي (دودیزه) کرنه | عصري (پرمختللې) کرنه |
| --- | --- |
| یوازې د کورنۍ د اړتیا وړ لګښتونو بشپړونکی ده | په مارکیټ کې د حاصلاتو د خرڅلاو له لارې د ګټې لوړ حد ته رسېدل |
| له تولیدي دودیزو وسایلو کار اخیستل | د تولید له نوې تکنالوژۍ څخه په پراخه توګه کار اخیستل |
| له مارکیټو تولیدي عواملو او د تولید له حاصل سره ډیرې کمزورې اړیکې | له مارکیټ، تولید او تولیدي حاصلاتو سره ژورې او پوره اړیکې |
| له تکنالوژۍ څخه په کار اخیستو کې ځان ساتنه | زړورتیا او تاوان منل |
| د غلو - دانو هغه ډېر لږ حاصل چې د وګړو اړتیا نه پوره کوي. | پوره اندازه تولیدات اود اړتیا بسیا کیدل |
| د شودیارې تر ۱۰ سانتي مترو پورې کولبه کول چې د بوټو ریښې په کې ښه وده وکولای شي. | په تراکتور سره تر ۲۰ سانتي مترو پورې د ځمکې کولبه کول چې د بوټو ریښې په کې پوره وده کوي |
| له خپلسرو (هرزه) بوټو سره د تخم کر چې له اصلي بوټو څخه خپلسروي (هرزه) واښه له خاورې زیات غذایي توکي اخلي | د پاک تخم کرل چې د خاورې ټول غذایي توکي اصلي نبات ته رسیږي |

## د ټولګي د ننه فعالیت:

زده کوونکي دې په دریو ګروپونو کې تنظیم شي له خبرو اترو وروسته دې لنډ ځواب ووایي:
بیا د هر ګروپ استازي دې د خپل ګروپ د کار په هکله د ټولګي په مخکې نورو زده کوونکو ته معلومات ورکړي.
لومړۍ ډله: ستره موخه په عنعنوي کرنه کې څه ده؟
دویمه ډله: ستره موخه په عصري او پر مختللې کرنه کې څه ده؟
دریمه ډله: د عنعنوي او عصري کرنې دوه دوه مثالونه ولیکئ.

## پوښتنې

پوښتنې په غور ولولئ دسم ځواب مخې ته یې(ص) او د غلط ځواب مخې ته یې (غ) ولیکئ.
۱- په عنعنوي کرنه کې تولیدات او کرنیز حاصلات ډیریږي( ) ( )
۲ - په عصري او ماشیني کرنه کې تولیدات او حاصل لږ او د یاد ولو وړنه وي.
۳- اقلیمي شرایط هم د کرنې په تولیداتو اغیز لري( ) ( )

## له ټولګي څخه د باندې فعالیتونه

زده کوونکي دې د خپلې کورنۍ د غړو سره له مشورې څخه وروسته دلاندې پوښتنو لنډ ځواب ولیکي او په راتلونکي ساعت کې دې په ټولګي کې بیان کړي.
ماشیني کرنه به زموږ د هېواد په عنعنوي کرنه کې څه ډول ځای ونیسي؟

## ۳،۱ مهم کرنیز تولیدات



۳- شکل په یوه کرونده کې د پنبې د محصولاتو راټولول

زموږ د هېواد طبیعي شرایط د کومو کرنیزو بوټو کرلوته برابر دي؟

افغانستان چې بېلا بېلې اقلیمي سیمې لري د بیلابیلو ونو او بوټو د کرلو وړتیا لري. څرنګه چې د افغانستان په سلوکې ۸۰ ځمکه غرونه، دښتې او ډاګونه دي، نو یوازې په سلوکې ۱۵ ځمکې د کرنې وړ دي چې اوس له هغو څخه نیمایي کرل کیږي. د افغانستان د ټولو کرنیزو ځمکو پراخوالی ۲۸ میلیونه هکټاره کیږي، له هغو څخه ۸،۷ میلیون هکټاره د کرنې وړ ده، خو هر کال یوازې په ٤،٥ میلیونه هکټاره کې کرنه کیږي.

د افغانستان له ټولو زیات کرنیز تولیدات غلې ــ دانې (غنم، وریجې، جوار او وربشې) دي چې په پراخه کرنیزه ساحه کې کرل کیږي او لوړ ارزښت لري. دغه غله د کرنې وړ په سلوکې ۸۳ آبي ځمکه او نوره للمي ځمکه نیسي. نورې ونې او بوټي لکه مېوې، سابه او صنعتي بوټي لکه چغندر، پنبه، د څارویو لپاره واښه او نور په ٤٣۰ زره هکټاره آبي کرنیزه ځمکه کې کرل کیږي.

ـ زموږ په هېواد کې د ټولو کرنیزو تولیداتو پرتله هغه څه چې د وګړو غذایي اړتیا پوره کوي، غنم دي، چې زموږ د خلکو د خوراک بنسټي توکي دي.

غنم تر ډېره پورې په جغرافیایي منځنیو عرض البلدونو کې وده کوي چې له دې پلوه افغانستان د غنمو د کرلو او ودې تر ټولو غوره طبیعي شرایط لري. غنم د افغانستان له ۳۰۰۰ څخه تر ۳۳۰۰ مترو پورې په بیلابیلو لوړو سیمو کې کرل کیږي او د افغانستان په سلو کې له (۵۰ څخه تر ٦۰) ځمکې یې نیولې دي، په داسې حال کې چې د کرنې وړ ځمکو په سلوکې ۹۰ برخه یې نیولې ده.

زموږ هېواد د پستو یا په مني کې د کرل کېدونکو غنمو او کلکو یا پسرلنیو غنمو د بیلابیلو ډولونو د لرلو له کبله په ټولو هېوادوکې لومړی ځای لري.

د روسي عالم (وایولوف) د څېړنې له مخې د افغانستان شمال سیمې په آسیا کې د پستو غنمو د ودې لومړنی مرکز دی چې د غنمو په سلوکې د ٥٧ ډولونو په لرلو سره په ټوله نړۍ کې لومړی ځای لري. دغه ډول غنم په مني کې په ابي ځمکو کې کرل کیږي.

په افغانستان کې د غنمو ډېره برخه په ابي ځمکو کې کیږي چې د للمي پرتله یې د حاصل اندازه ډېره زیاته ده. د افغانستان د کرنې لاندې ځمکو په سلو کې ٥٦ یې آبي او ٤٤ یې للمي دي. د غنمو له دوه پر دریمې برخې څخه زیات یې ببرته په تولیدوونکو سیمو کې خوړل کیږي، یوازې دریمه برخه یې د هېواد دننه مارکیټونو ته د پلورلو لپاره وړل کیږي. د للمي غنمو د کرلو ډیرې پراخې ځمکې د هېواد په شمال کې دي، خو په آبي توګه غنم په جنوبي، مرکزي او جنوب لویدیځو سیمو کې کرل کیږي.

ـ له غنمو څخه وروسته وریجې د افغانستان مهمه غله او د خلکو د خوراک مهم توکی دی.

وریجې زیاتره په هغو ځایونوکې کرل کیږي چې توده هوا او ډیرې اوبه ولري. په افغانستان کې هم وریجې په هغو ټیټو سیمو کې چې توده هوا او پریمانه اوبه لري، کرل کیږي چې دوه ډولونه لري: نرۍ وریجې او غټې وریجې.

د غټو وریجو پرتله د نریو وریجو بیه، د تولیداتو اندازه او لګښت زیات دی. نرۍ وریجې د هېواد په ختیځو ولایتونو یعنې لغمان، کونړ او ننګرهار اوپه شمالي ولایتونو لکه بغلان، کندوز او تخار کې ډیرې کرل کیږي. غټې وریجې معمولاً په میدان وردګ، لوګر، بغلان او تخار ولایتونو کې کرل کیږي.

ـ جوار هم په تودو او اوبه لرونکو سیمو کې کرل کیږي. د جوارو تولیدات، پخوا په ډیرو ولایتونو کې مصرفیدل او د یو شمېر خلکو خوراکي توکي بلل کیدل، خوپه دې وروستیو کې دهغو د کرلو ساحه کوچنۍ شوې ده او د خلکو د خوراکي توکو په توګه ورڅخه ډیر کار نه اخېستل کیږي.

جوار په پکتیا، پکتیکا، ننګرهار او لوګر کې ډیر کرل کیږي.

ـ وربشې هم په تودو او اوبه لرونکو سیمو کې کرل کیږي، خو د غنمو پرتله په سړو سیمو کې ښه وده کوي. وربشې زیاتره څارویو ته ورکول کیږي.

زموږ د هېواد په ګڼ شمېر سیمو کې یو شمېر نورې غلې ـ دانې لکه مې، لوبیا، نخود، مشنګ او باقلي هم کرل کیږي.

ـ سابه هم په افغانستان کې مهم خوراکي توکي دي. په افغانستان کې مهم کرل کېدونکي سابه دادي: کچالو (پټاټې) تور بانجان، رومي بانجان، ګازرې، شلغم (ټیپر) پالک، کدو، ګلپي، تورایي،

مرچک، لیرو (بینډۍ)، کاهو او نور.

- مېوې هم زموږ د هېواد غوره کرنیز تولیدات دي. د افغانستان طبیعي شرایط د میوه لرونکو بیلابیلو ونو دودې او روزنې لپاره ډېر غوره دي. مېوې د کورنیو اړتیاوو له پوره کولو سربېره بهر ته هم صادرېږي.

افغانستان د بیلابیلو پاڼېږو او ستروس مېوو د لرلو له مخې نړیوال نوم لري چې هم له تازه انګورو، منو، خټکیو، هندوانو، انارو، ناکو، بهي او نورو اوهم یې له وچو لکه بادامو، ممیزو، پستې، غوزانو او نورو څخه استفاده کیږي او بهرته هم لیږل کیږي.

- صنعتي بوټي هم لکه ګني، چغندراو پنبه د هېواد په بیلابیلو سیمو کې کرل کیږي. افغانستان په نړۍ کې د پنبې د کرلو سیمه ده، هغه سیمې چې توده هوا اوپوره اوبه ولري د پنبې لپاره غوره بریښي. د هغې کرل د هېواد په شمال، لویدیځ او ختیځ کې رواج لري.

چغندر هم له پخوا څخه زموږ په هېواد کې کرل کیږي، په پخوا کلونو کې یې په کندوز او بغلان کې کرل زیات رواج و او د بغلان د بورې (شکرې) په فابریکه کې ور څخه استفاده کیده.

ګني د ننګرهار، کونړ، لغمان او پکتیا ولایتونو کې په یوه محدوده ساحه کې کرل کیږي، د جلال آباد شاوخوا کې یې کرنه ډیره رواج ده چې د ګوړې په جوړولو کې ورڅخه کار اخېستل کیږي.

| د محصولاتو ډول په ټن | ۱۳۷۷ | ۱۳۷۸ | ۱۳۷۹ |
|---|---|---|---|
| غنم | ۸۳٤،۲ | ٤۹۹،۲ | ٤۹٦،۱ |
| وریجې | ٤٥۰ | ٤۲۰ | ۲۳۳ |
| وربشې | ۲٤۰ | ۲۱٦ | ۷٤ |
| جوار | ۳۳۰ | ۲٤۰ | ۱۱٥ |
| ږدن | ۲۲ | ۲۲ | ۲۲ |
| کچالو (پټاټې) | ۲۳٥ | ۲۳٥ | ۲۳٥ |
| دانې (لوبیا، نخود او نور) | ٥۰ | ٥۰ | ٥۰ |
| کنځلې | ۲٤ | ۲٤ | ۲٤ |
| پومبه دانه | ٦٦ | ٦٦ | ٦٦ |
| مالوچ | ۲۲ | ۲۲ | ۲۲ |
| سابه | ٥۲۰ | ٥٤۰ | ٥٤۰ |
| هندوانې | ۹۰ | ۹۰ | ۹۰ |
| خټکي | ۲۲ | ۲۲ | ۲۲ |
| انګور | ۳۳۰ | ۳۳۰ | ۳۳۰ |
| ګني | ۳۸ | ۳۸ | ۳۸ |
| چغندر | ۱ | ۱ | ۱ |
| منې | ۱۸ | ۱۸ | ۱۸ |
| شفتالو | ۱٤ | ۱٤ | ۱٤ |
| الو | ۳٥ | ۳٥ | ۳٥ |
| ستروس | ۱۲ | ۱۲ | ۱۲ |
| زردالو | ۳۸ | ۳۸ | ۳۸ |
| نورې مېوې | ۱٦۸ | ۱٦۸ | ۱٦۸ |

- زموږ د هېواد په بیلابیلو سیمو کې بیلابیل طبي بوټي هم وده کوي چې زموږ خلک له هغو څخه له ډېر پخوا راهیسې په ډېرو لومړنیو بڼو کار اخلي یو شمېر دغه بوټي بهرته هم استول کیږي، هغه بوټي چې یوناني طب کې ورڅخه کار اخېستل کیږي او یاهم د معاصر درمل جوړونې په صنعت کې کارول کیږي دادي: زعفران خوږه ولې، شمکۍ او نور.

زموږ د هېواد یو شمېر سیمو کې غوړ لرونکي بوټي لکه زغر، شړشم، کنځلې، لمرګلې او نور هم کرل کیږي.

( ۲ ) جدول: د ۱۳۸۰ ـ ۱۳۸۳ کلونو په ترڅ کې د افغانستان یو شمېر اصلي کرنیزو محصولاتو د تولیداتو اندازې (ارقام په ټنو)

| محصولات | ۱۳۸۰ | ۱۳۸۱ | ۱۳۸۲ | ۱۳۸۳ |
|---|---|---|---|---|
| غنم | ۱/۵۹۷/۰۰۰ | ۲/۶۸۶/۰۰۰ | ۳/۴۸۰/۰۰۰ | ۲/۸۸۴/۰۰۰ |
| وریجې | ۲۴۲/۰۰۰ | ۳۸۸/۰۰۰ | ۲۶۰/۰۰۰ | ۳۲۵/۰۰۰ |
| وربشې | ۸۷/۰۰۰ | ۳۴۵/۰۰۰ | ۲۴۰/۰۰۰ | ۳۳۷/۰۰۰ |
| جوار | ۱۶۰/۰۰۰ | ۲۹۸/۰۰۰ | ۲۱۰/۰۰۰ | ۳۱۵/۰۰۰ |
| ږدن | ۲۲۰/۰۰۰ | ۲۰/۰۰۰ | ۱۷/۰۰۰ | ۲۲/۰۰۰ |
| کچالو او چغندر | ۲۷۴/۰۰۰ | ۲۶۹/۰۰۰ | ۴۳۴/۰۰۰ | ۳۳۹/۰۰۰ |
| ګنې | ۳۸/۰۰۰ | ۳۸/۰۰۰ | ۳۸/۰۰۰ | ۳۸/۰۰۰ |
| د شکرې چغندر | ۱/۰۰۰ | ۱/۰۰۰ | ۱/۰۰۰ | ۱/۰۰۰ |
| وچه میوه | ۶۸/۷۰۰ | ۶۸/۹۰۰ | ۵۸/۴۰۰ | ۷۴/۹۰۰ |
| لوبیا، نخود او نور | ۵۰/۰۰۰ | ۵۰/۰۰۰ | ۴۲/۱۰۰ | ۵۰/۰۰۰ |
| د بادام بیلابیل ډولونه | ۹/۰۰۰ | ۹/۰۰۰ | ۷/۰۰۰ | ۱۵/۰۰۰ |
| غوزان | ۵/۰۰۰ | ۵/۰۰۰ | ۳/۹۰۰ | ۵/۰۰۰ |
| پسته | ۲/۸۰۰ | ۲/۸۰۰ | ۲/۲۰۰ | ۳/۰۰۰ |
| ښوون | ۹۰۰ | ۱/۱۰۰ | ۲/۴۰۰ | ۹۰۰ |

## د ټولګي دننه فعالیت

زده کوونکي دې په څو ډلو وویشل شي، لومړی دې د نوي لوست متن له ځان سره ولولي، بیا دې د هېواد د یو ډول کرنیزو تولیداتو په هکله بحث وکړي او د ډلې استازی د خپل بحث پایله دې خپلو ټولګیوالو ته ووایي.

## پوښتنې

۱ ـ کوم ډول کرنیز بوټي زموږ په هېواد کې په پراخه اندازه کرل کېږي؟ د هغو په هکله توضیحات ورکړئ.

۲ ـ وریجې په څو ډوله دي او د هېواد په کومو سیمو کې او په څه ډول طبیعي شرایطو کې کرل کېږي؟

۳ ـ د هېواد څو ډوله مېوې پېژنئ، د هغو د ارزښت په هکله معلومات ورکړئ.

٤ ـ صنعتي بوټي یعنې څه او څو ډوله یې پېژنئ، نوم یې واخلئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

ستاسې د اوسیدلو له سیمې څخه کوم ډول کرنیز محصولات ترلاسه کېږي، د هغو په کرلو کې کومې ستونزې تر سترګو کېږي، ستاسې د سیمې کرنه به څرنګه پرمختګ وکړي چې د بزګرانو او د هېواد اقتصاد مو پیاوړی شي. په دې هکله په یوه پاڼه کې لیکنه وکړئ او په ټولګي کې د هغې په هکله خبرې وکړئ.

# د کرنې جغرافیایي وېش




نقشۀ I غلې دانې

تاسې پوهېږئ چې د یو شمېر ونو ـ بوټو (نباتاتو) کرل په ټول هېواد کې امکان لري؟

د کرنې جغرافیایي وېش داڅرګندوي چې د ونو، بوټو بیلابیل ډولونه او غلې، دانې د هېواد په کومو سیموکې او ترڅه ډول اقلیمی شرایطو لاندې په کوم ډول ځمکو کې کرل کیږی او تولید یې لوړوالی مومي.

لکه چې په مخکېني لوست کې وویل شول، زموږ د هېواد غرنی وضعیت ددې لامل شوی دی چې د هېواد په ډېرو سیموکې په تېره په غرنیو او دښتي سیموکې کرنه ونه شي.

د هېواد په کرنیزو سیموکې غلې دانې، سابه او مېوې کرل کیږي. چې ستیپ ځمکې او د ویالو غاړې دي.

د هېواد یوه برخه طبیعي ځنګلونو او څرځایونو نیولې ده. لکه څرنګه چې په (I) نقشه کې ښکاري غنم او وربشې څه ناڅه د هېواد په ټولو سیموکې کرل کیږي.

که (II) نقشې ته وکتل شي، جوار زیاتره د هېواد په ختیځ او په لږ شمېر نورو سیموکې کرل کیږي، خو وریجې زیاتره په ختیځ او شمال کې کرل کیږي.




څرنګه چې په پخواني لوست کې هم ولوستل شول او د صنعتي بوټو په نقشه کې هم ښکاري، پنبه د شمال، لوېدیځ او جنوب لوېدیځ په ځینو ولایتونو، ګني په ختیځ او چغندر زیاتره په کندز او بغلان کې کرل کیږي.

یو شمېر نور صنعتي بوټي لکه لمرګلي، کنځلې او زغر د هېواد بیلابیلو سیمو

کې ځای ځای کرل کېږي.

د باغونو او تاکستانونو په نقشه کې ښکاري چې پټاټې او نور سابه په ختیځو سیمو، شمال، هرات او کندهار کې ډېر کرل کېږي، مېوې، په تېره بیا انګور په کندهار، پروان، هرات، کابل او کاپیسا، ستروس (لکه نارنج، لیمو) زیتون او نور په ختیځ او ختځکې او هندوانې په شمالي ولایتونو کې رواج دي.




۶- شکل




۷- شکل

## د ټولګي دننه فعالیت

زده کوونکي دې څلور ډلې شي، لاندې کارونه دې ترسره او د هغو پایلې دې په ټولګي کې وړاندې کړي:

ـ لومړۍ ډله به د غلو ـ دانو د ۱ نقشې له مخې او د مخکېنی لوست سره سم، د غنمو او وریشو د کرلو سیمې وښیي او دا به څرګنده کړي چې په نقشه کې هره ځانګړې نښه د څو زره ټنه تولیداتو ښودنه کوي.

ـ دویمه ډله به د وریجو او جوارو د کرلو سیمې د غلو ـ دانو په دریمه ډله به د صنعتي بوټو د کرلو سیمې د صنعتي نباتاتو او څلورمه ډله به د باغونو او تاکستانونو په نقشه کې د باغونو او تاکستانونو سیمې او د سبو او میوو د تولید سیمې وښیي.

## پوښتنې

۱ ـ د کرنې جغرافیايي وېش څه مفهوم لري؟

۲ ـ ولې غنم د هېواد په ټولو سیمو کې کرل کېږي؟ یوازې دوه لاملونه یې وواییئ.

۳ ـ ولې زموږ د هېواد په ځینو سیمو کې یو شمېر کرنیز بوټي او د هغو د تولید اندازه لږه ده؟ د هغه لامل (علت) څه دی؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

تاسې هریو، یو ډول کرنیز بوټي غوره او د درس له مخې په یوه ولایت کې یې د کلنې تولید اندازه اټکل کړئ.

پنځم لوست

## ۴، ۱ مالداري او د هغې اقتصادي ارزښت



۸- شکل د افغانستان د دوه بوکانو لرونکو اوښانو تصویر

زموږ په هېواد کې د څارویو ساتنه او روزنه په څه ډول پرمخ وړل کیږي؟

د څارویو روزنه او ساتنه زموږ د خلکو په ژوند کې څومره ارزښت لري؟

مالداري او د څارویو روزنه په افغانستان کې ډېر لرغونتوب لري. کله چې د څارویو ښکار کول مخ په کمښت شول اویا بشپړ ودریدل. خلکو یو نوی ډول ژوند پیل کړ او د څارویو په ساتنه او روزنه بوخت شول. له هغه وخته تر اوسه پورې پیړۍ تېرې شوي دي او خلکو همدغه ډول ژوند ته دوام ورکړی دی.

زموږ د هېواد په ټولو سیمو کې د غرونو لمنو او خاورینو غونډیو د څارویو روزنې او ساتنې ته ډیر غوره شرایط چمتو کړي دي او تر اوسه پورې یې زموږ یو زیات شمېر وګړي د ژوند په زیاته موده کې په همدغه ډول بوخت کړي دي.

په افغانستان کې په سلوکې د ۸۰ په شاوخوا وګړي په کرنه بوخت دي، هیڅ داسې یو بزګر نشته چې د څارویو په ساتنه بوخت نه وي، سربېره په دې، زموږ یو شمېر خلک، په تېره بیا کوچیان په بشپړ ډول د څارویو په ساتنه بوخت دي او همدایې د ژوند اړتیاوې پوره کوي.

د څومره والي او څرنګوالي له پلوه د څارویو د روزنې یا مالدارۍ ارزښت په دې کې دی چې زموږ د خلکو د اقتصاد په پرمختیا کې مهم رول لري.

د څارویو د تولیداتو ارزښت د ملي نا خالص عاید په سلوکې ۷ - ۱۰ پورې برخه جوړوي. سربېره پردې خلک د څارویو څخه د کار څواک د تولید، باروړلو، د پوستکي د ترلاسه کولو، وړیو او نورو




لپاره هم کار اخلي. د څارویو یو شمېر محصولات لکه وړۍ، د پسونو او غویانو پوستکي، قره قل پوستکي او کولمې د خپلې بیې له پلوه د هېواد د صادراتو په سلوکې ۱۰ ـ ۲۰ برخې جوړوي.
همدارنګه د غالیو صادرات او د وړیو صنایع، پوستین باب او د پوستکو صنایع هم د افغانستان په صادراتو کې د پام وړ برخه لري. له دې پرته په هېواد کې د اړتیا وړ غوښه او شیدې چې اندازه یې په یوه کال کې د هر وګړي لپاره په ترتیب سره له ۱۱.۵ تر ۶۰ کیلوګرام اټکل شوې ده، له کورنیو سرچینو چمتو کیږي.
د یادولو وړ ده چې څلوېښت کلنو جګړو او وچکالۍ مالدارانو او د څارویو ساتنې ته هم زیان اړولی، ددې تر څنګ د کال په سړو شپو ـ ورځو کې د غوره غوجلو نشتوالی او د بسیا پاکو اوبو کمښت هم د څارویو په مړینه اغیزه لري چې اندازه یې هر کال په سلوکې ۳۰ ته رسیږي.

## د کورنیو څارویو ډولونه او د هغو جغرافیايي وېش

هغه کورني څاروي چې بزګران او مالداران یې ساتي دادي: پسونه، غواوې، وزې، خره، اوښان، اس، کچرې او کورني چرګان. د کورنیو څارویو په ډله کې تر ټولو زیات قره قل پسونه او عادي پسونه د هېواد په اقتصاد کې ډېر غوره ارزښت لري او د څارویو د محصولاتو په صادراتو کې یې برخه ډېره ده.
لکه چې د څارویو روزنې په (I) نقشه کې ښکاري، د پسونو روزنه څه ناڅه د هېواد په ټولو برخو

کې ترسترګو کېږي، خو قره قل پسونه یوازې په شمالي ولایتونو کې له بدخشان څخه تر هرات پورې پراختیا لري. وزې هم په ټول هېواد کې روزل کېږي.

که چېرې د څارویو روزنې (I I) نقشې ته ځیر شو، نور څاروي لکه غواګانې، خره، اسونه او اوښان څه ناڅه د هېواد په ټولو ولایتونو کې روزل کېږي.



۱۰- شکل



## د ټولګي دننه فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي، لاندې دندې دې پرمخ بوځي او د هغو پايلې دې د ډلې استازی په ټولګي کې خپلو ټولګیوالوته وړاندې کړي:

۱. د نوي لوست متن دې ورو ولولي او بيا دې د مالدارۍ په ارزښت خبرې وکړي.

۲. د لوست متن او د څارويو روزنې (I) نقشې ته دې وګوري، د پسونو، قره قل پسونو او د وزو د روزنې د جغرافيايي ویش په هکله دې معلومات ورکړي.

۳. د نوي لوست متن او د څارويو د روزنې (I I) نقشه دې وګوري د غواګانو، خرو، آسونو او اوښانو د روزنې او ساتنې سيمې دې په نښه کړي.



## پوښتنې

۱. مالداري زموږ د هېوادوالو په ژوند او اقتصاد کې څه ارزښت لري؟ څرګند يې کړئ.

۲. د کوم ډول کورنيو څارويو روزنه او ساتنه زموږ په هېواد کې دود ده؟ نوم يې واخلئ.

۳. له محصولاتو پرته د کومو څارويو له څواک څخه د کومو کارونو په ترسره کولو کې کار اخېستل کيږي؟ توضيح يې کړئ.

٤. هغه محصولات چې له څارويو ترلاسه کيږي، کوم دي؟ له هغو څخه په څه شي کې کار اخېستل کيږي او له صنعتي کېدلو څخه وروسته د څارويو د کوم محصول ارزښت اوچتيدلای شي؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

له سرچينو نه په کار اخېستلو سره د کوچيانو د ژوند، کار، د هغوی د څارويو روزنې او د هغوی د ستونزو په هکله يوه مقاله وليکئ.

# ۵ ، ۱ د مالدارۍ لارې چارې



۱۱- شکل: دهېواد په شمال کې سیند ته نږدې د څارویو یوه رمه

زموږ په هېواد کې د څارویو ساتنه او روزنه په څه ډول پرمخ وړل کېږي؟

## الف ـ لرغونې او دودیزه طریقه (لارې چارې)

لکه څنګه چې مخکې لوست کې مو د مالدارۍ د ارزښت په هکله معلومات ترلاسه کړل، زموږ یو زیات شمېر هېوادوال د څارویو د ساتنې له لارې خپل ژوند پرمخ بیایي، همدارنګه د څارویو ساتل د هېواد لویه عایداتي سرچینه ده. مالداري په دودیزه او عنعنوي بڼه له ډېر پخوا راهیسې زموږ په هېواد کې رواج ده. کوچې مالداران د ډېرو زیاتو کړاوونو په ګاللو سره د کال په اوږدو کې د خپلو څارویو د څرولو په خاطر له یوه څرځای څخه تر بل پورې د تګ په حال کې وي او په واښه لرونکو پراخو څرځایونو کې په دودیز ډول د هېواد په بیلابیلو برخو کې د څارویو په ساتنه بوخت وي.

د دودیزې مالدارۍ لوېې ستونزې دادي: وچکالي، د څښلو د اوبو کمښت، د ناپاکه اوبو څښل، په ژمي کې د سرپنا نه لرل، د حیواني ناروغیو په وړاندې د څارویو نه ساتل، د وقایې په خاطر له حیواني کلېنیکونو او فارمونو سره د دوی د اړیکو نشتوالی، د ناروغو څارویو په درملنه کې ستونزې او د اصلاح شوو نسلونو خواته نه پاملرنه او نورې ستونزې.

## ب ـ عصري او پرمختللې طریقه

په افغانستان کې په عصري او فني ډول د څارویو روزنه او تکثیر په ۱۳۱۲ هـ ل کال کې پیل شو.

په ۱۳۱۵ هـ ل کال د لومړي ځل لپاره په کابل کې د ناروغو څارویو د درملنې لپاره لومړنی حیواني کلېنیک جوړ شو چې موخه یې د دولتي څارویو په تېره بیا د عسکري قطعاتو اسونو او د یو شمېر

مراجعینو د څارویو درملنه وه. په ۱۳۲۳ هـ ل کال کې په بدخشان او د هغه وخت د قطغن په ولایت کې په غواګانو کې وژونکې ناروغي خپره شوه چې ډېر زیات زیان یې اړولی و. له هغه مهال را وروسته د وترنرۍ خدمتونو د پراختیا لوري ته پاملرنه وشوه او د ۱۳٤٥ هـ ل کال ترپای پورې په بیلابیلو ولایتونو کې نهه کلېنیکونه جوړ شول او په ۱۳۵۳ هـ ل کې یې شمېر ۱٦ ته لوړ شو. په اوسني وخت کې په هېواد کې د وترنري علومو پوهنځیو شمېر زیات شوی دی او د حیواني کلېنیکونو جوړولوته هم پاملرنه ډېره شوې ده، خو بیاهم د پرسونل او لازمو وسایلو د نشتوالي له کبله ستونزې شته، نو ځکه د څارویو د مړینې شمېر هم ډېر دی.

د عصري او پرمختللې مالدارۍ او د څارویو د محصولاتو د زیاتولو مهم ټکي دادي:



۱۲- شکل

- د پوره اندازې وښو چمتو کول او د څارویو خوراک ته ښه پاملرنه.
- د حیواني ناروغیو په وړاندې د څارویو ساتنه.
- د زراعتي اصلاح شوو نسلونو ترویج او ډېربښت.
- د حیواني کلېنیکونو او فارمونو تاسیس او زیاتول.
- د منظمې اداري او غوره منجمنت شتوالی.

### د ټولګي دننه فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې د نوي لوست د متن او تصویرونو په کتلو سره د دودیزې او پخوانۍ مالدارۍ په اړه او دویمه ډله دې د مالدارۍ د نوې او پرمختللې بڼې په هکله خبرې وکړي او د خپلو خبرو پایله دې په ټولګي کې د خپلو ټولو ټولګیوالو تر مخې تشریح کړي.

### پوښتنې

۱. د دودیزې مالدارۍ ستونزې کومې دي؟ توضیح یې کړئ.
۲. د څارویو د روزنې عصري او فني بڼه کومه یوه ده، معلومات ورکړئ.
۳. کوم لاملونه (علتونه) د مالدارۍ د پرمختګ او د محصولاتو د زیاتیدو سبب کیدای شي؟ نوم یې واخلئ.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د یوه څاروي اویاهم د یوه حیواني کلېنیک تصویر چمتو کړئ او په بل ساعت کې د هغه په هکله خبرې وکړئ.

# ۶،۱ وحشي ژوي




۱۳- شکل: واښه خوړونکي ژوي

د وحشي ژويو نقشې ته وګورئ زموږ په هېواد کې کوم ډول واښه خوړونکي او غوښه خوړونکي ژوي شته؟

ژوي د چاپېريال د يوې مهمې ارزښتمنې ښکارندې (پديدې) په توګه په طبيعي بيارغاونه باندې ژوره اغيزه لري. په طبيعت کې، په تېره بيا په ځنګلونو کې بيلابيل ژوي ژوند کوي چې هريو يې ځانګړې اهميت لري. د هغو ژويو ارزښت چې په ځنګلونو او څړځايونو کې اوسېږي، د ګرځندويانو (توريستانو يا سيلانيانو) د راښللو، ښکارکولو، د هغوی د پوستکي د ارزښت او د طبيعت د توازن له مخې ډېر اوچت دی. ددغو ژويو په ژوند او پايښت کې د انسانانو د فعاليت اغېزه ډېره ژوره ده او د هغوی ښکارکول او په پټنځايونو کې يې لاس وهنه د هغوی ژوند له خطر سره مخامخ کوي. انسان د ځنګلونو په وهلو، د کورنيو څارويو په څرولو، د وښو او د سوځولو په خاطر د ونو بوټو په پرې کولو سره وحشي ژويو ته ګوابښ پېښوي.

د افغانستان طبيعي جوړښت چې ډېره برخه يې غرونه دي، په تېره بيا د هندوکش لړۍ چې زياتې لوړې - ژورې او شګلنې لمنې او ډاګونه لري، د ژويو لپاره يې جغرافيايي ارزښت رامنځته کړی دی او د ژوند او ژويو ډول ډول والی يې پياوړی کړی دی. زموږ په هېواد کې د ځمکې د جوړښت، اقليمي شرايطو او خوراکي توکو د پيداکېدو له مخې د بيلابيلو ژويو او الوتونکو لپاره د ژوند غوره چاپېريالونه رامنځته شوي دي چې يو شمېر يې دادي:

- ذوحياتين او ښښېدونکي لکه: خرمښکی، سمسېره، چنګاښ، مار او نور. په افغانستان کې يوازې د مار ۲۷ ډولونه پېژندل شوي دي. اووه ډوله يې زهري دي چې دوه ډوله يې کبرا او پنځه ډوله يې افعي ماران دي.

- تي لرونکي ژوي: چې ۱۲۰ ډولونه يې په افغانستان کې پېژندل شوي، خو له بده مرغه زيات شمېر



۱٤- شکل

يې اوس د له منځه تلو په حال کې دي لکه:

- پړانګ چې د پامير په لوړو درو او مرغاب کې ليدل شوی و.
- سورلنډيان چې د هېواد مرکزي سيمو کې ژوند کوي.
- ليوان، سرې ګيدړې، غرنۍ پيشوګانې او کوچنۍ وحشي پيشوګانې چې په ټول هېواد کې شته.
- يږې چې هم په غرنيو سيمو او هم په ځنګلونو کې اوسيږي.
- همدارنګه د مارکوپولو پسونه، هوسۍ، مارخور وزې او نور چې هريو يې د يادولو وړ دي او د افغانستان په بيلابيلو سيمو کې ژوند کوي.

يوه سروې چې زموږ په هېواد کې ترسره شوې وه، په هغې کې د هېواد په بيلابيلو سيمو کې د الوتونکو ۳۰۰ بيلابيل ډولونه پېژندل شوي وو چې په هغو کې د دښتو، ځنګلونو او اوبو بيلابيل الوتونکي يادولای شو چې تر ټولو نامتو يې زاڼه، ډنګ، مارغه،طوطي، کارغه، باښه، توتکۍ، چڼچڼې، پتکه او نوردي.

## د ټولګي دننه فعاليت:

لاندې جدول په خپلو کتابچو کې د لوست له متن او نقشو څخه بشپړ کړئ.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| واښه خوړونکي ژوي | غرنۍ وزې | | | | | |
| غوښه خوړونکي ژوي | پړانګ | | | | | |

## پوښتنې:

۱ ـ د وحشي ژويو ژوند او شتوالی له کومو ګواښونو سره مخامخ دی؟ توضيح يې کړئ.

۲ ـ څو ډوله الوتونکي، تي لرونکي او ځښيدونکي ژوي چې پېژنئ، نوم يې واخلئ.

## له ټولګي څخه بهر فعاليت:

په طبيعت کې د الوتونکو او وحشي ژويو د ارزښت په هکله او هغه ګواښ چې دوی ورسره مخامخ دي او داچې څرنګه بايد د هغو ساتنه او څارنه وشي يوه مقاله پرې وليکئ.

## ۷،۱ د کرنې او مالدارۍ څرنګوالی



۱۵ شکل

په افغانستان کې د کرنې او مالدارۍ وضعیت څه ډول دی؟

ددغه څپرکي په لوستونو کې تاسې د افغانستان له کرنې او مالدارۍ سره آشنا شوئ.

ددې څپرکي په پای کې غواړو چې په خپل هېواد کې د کرنې او مالدارۍ پر وضعیت یوه کتنه وکړو:

افغانستان یو کرنیز هېواد دی. اصلاً هغه هېوادونه چې زیات شمېر خلک یې په کرنه بوخت دي، پرمختللي نه بلل کیږي. افغانستان چې یو پرمختیایي هېواد دی، زیاتره وګړي یې په سیده او څه هم په ناسیده توګه خپلې د ژوند اړتیاوې له کرنې او مالدارۍ څخه پوره کوي.

سره له دې چې د افغانستان اقتصاد په څو وروستیو کلونو کې ښه شوی او وده یې موندلې، خوبیاهم دغې ودې لوړه او بیوزلي له منځه نه ده وړې. په اوسني وخت کې شپږنیم میلیونه وګړي نه شي کولای خپلې ورځنۍ ډېرې لږې خوراکي اړتیاوې پوره کړي.

په سلوکې ۲٤ کورنۍ هره ورځ ډېر لږ خوراکي لګښت لري او د ټول هېواد په سلوکې ۳۰ نفوس د خپلې اړتیا څخه لږ خوراکي توکي مصرفوي. په سلوکې ٤۰ له درې کلنۍ څخه د ټیټ عمر ماشومان د وزن په کمښت (خوارځواکۍ) باندې اخته دي او په سلوکې ٦.۷ یې له همدې امله مري. په ټولیزه توګه د هېواد په سلوکې ٤٤ وګړي په بیلابیلو کچو د خوراکي توکو ستونزه لري.

که چیرې د افغانستان له اوبو او ځمکې څخه سمه ګټه واخېستل شي، زموږ د کرنې او د څارویو محصولات به څو څو ځله اوچت شي، نه یوازې دا چې کورنۍ اړتیاوې به مو بشپړې شي، بلکې

د کرنیزو محصولاتو د صنایعو او د هېواد د صادراتو په وده کې به هم بنسټي رول ترسره کړي.

هغه لاملونه (عوامل) چې د هېواد د کرنې او مالدارۍ د چارو په پرمختګ، پراختیا او یا هم د هغو په محدودیت اغیزه لري، هغه طبیعي (لکه اقلیم، د ځمکې جوړښت او خاوره)، بشري (لکه، کارځواک او د کارګرانو تخنیکي کچه، فني او د بزګرانو خبرتیا او پوهه) اقتصادي (لکه پانګه، د خرڅلاو بازار، حمل او نقل او نور) او په پای کې سیاسي لامل یعنې د حکومت سیاست دی.



**۱٦- شکل**: په انځور کې یو سړی لیدل کیږي چې غنم ریبي

له طبیعي لاملونو څخه یوهم اقلیم دی چې د کرنیزو توکو په څومره والي او څرنګوالي سیده اغیزه لري.

د هوا د سوړوالي او اوږده ژمي له امله د هېواد په ځینو لوړو سیمو لکه په کابل، ګردېز، غزني او یو شمېر مرکزي ولایتونو کې کرنه یوازې په یو فصل کې کیږي.

- د اورښت کمښت او د اوبو نشتوالی هم د هېواد کرنې ته ځینې وخت ډېر زیان اړوي.
- په هېواد کې د اوبولګولو سیستم ښه پرمختګ نه دی کړی، د افغانستان د سیندونو د اوبو جریان په کره توګه نه دی څېړل شوی او نه یې هم له اوبو څخه سمه استفاده کیږي، همدارنګه د اوبو لګولو ډېرې آسانتیاوې یا د بزګر په مټ یاهم د سیمه ییزو موادو په واسطه ترسره کیږي.
- د کرنې په برخه کې پانګه اچونه هم کمزورې ده او تر اوسه پورې دهېواد په ډېرو هغو سیمو کې چې کرنه یې اوبو لګولوته اړتیا لري، د اوبو ذخیره کولو بندونه، نه لري او د پام وړ ویالو جوړولو او د کانالونو کیندلوته پاملرنه، نه ده شوې.

بزگران او مالداران هم داسې پوره پانګه نه لري چې د خپلې مالدارۍ او کرنې ښه ښه او عصري کړي او اصلاح شوي کرنیز تخمونه، د ناروغیو او افاتو ضد درمل، کیمیاوي سرې او کرنیز ماشینونه وربانديې واخلي.

په ټولیزه توګه ویلای شو چې په افغانستان کې کرنه او مالداري تر ډېره پورې په دودیزه بڼه پرمخ وړل کیږي چې د کرنیزو چارو لویه موخه یوازې د بزګر د کورنۍ د اړتیا بشپړول دي.

په کار ده چې کرنه او مالداري په عصري او پرمختللې بڼه ترسره شي، د اوبو لګولو سیستم باید منظم شي او د هغه نور پرمختګ او ښه والی هم په پام کې ونیول شي، باید د کرنې او مالدارۍ فارمونه او د څارویو روغتیایي کلېنیکونه پراخه شي، د کروندې او مارکیټ ترمنځ غځېدلې لارې جوړې او فابریکې او صنعتي مرکزونه  باید کرنیز توکي په صنعتي محصولاتو واړوي او د توکو ارزښت او کیفیت ښه کړي او دې ډول صنعتي مرکزونو ته پراختیا ورکړل شي. له دې پرته د کرنې او مالدارۍ برخې ته د پانګې اچونې د پاملرنې د را اړولو په خاطر باید د منځنۍ او اوږدې مودې پرمختیایي پلانونه عملي شي، طبیعي سرچینې، څړځایونه او ځنګلونه باید وساتل شي او له هغو څخه په دایمي او معقوله توګه ګټه واخېستل شي.


۱۷- شکل



۱۸- شکل

## د ټولګي دننه فعالیت

زده کوونکي دې دوه ډلې شي او د ښاغلي ښوونکي د لارښوونې سره سم دې د کرنې او مالدارۍ د ستونزو په هکله او دا چې په څه ډول باید دغه ستونزې له منځه یوړل شي، بحث وکړي او د ډلې استازی د خپل بحث پایله دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

## پوښتنې

۱ ـ په هېواد کې کوم لاملونه د کرنې او مالدارۍ د پرمختګ خنډګرځېدلي، نوم یې واخلئ.
۲ ـ څرنګه کولای شو په هېواد کې د کرنې او مالدارۍ حالت ښه کړو، توضیح یې کړئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د لومړي څپرکي مهم ټکي او لنډیز ولیکئ او بیا یې ټولګي ته وړاندې کړئ.

## دویم څپرکی

# انرژي او کانونه

### په دې څپرکي کې لولو:

- انرژي او د هغې اهمیت
- د انرژۍ د نوي کېدو او نه نوي کېدو وړ سرچینې.
- برېښنا
  - د اوبو برېښنا
  - حرارتي برېښنا
- د ډبرو سکاره او زموږ په هېواد کې د هغو کانونه
  - د صوف درې د ډبرو سکرو کان
  - د آشپشتې د ډبرو سکرو کان
  - د کرکر د ډبرو سکرو کان
  - د هرات د سبزك د مسجد چوبي د ډبرو سکرو کان
- نفت او گاز
  - نفت
  - گاز
- د هېواد نفت لرونکې حوزې
- فلزات
- د فلزاتو د کانونو اقتصادي اهمیت
- د ودانۍ د ډبرو کانونه
- قیمتي ډبرې
  - الماس
  - لاجورد
  - لعل
  - زمرد
- د کانونو او انرژۍ د حالت څېړنه

## د څپرکي عمومي هدفونه

**زده کوونکي به د دغه څپرکي په لوستلو سره لاندېنيو پوهنيزو موخوته ورسېږي:**

- زده کوونکي به د بشر په ژوند کې د انرژۍ په اهميت پوه شي.
- د هېواد د انرژۍ له منابعو او د هغو له اندازې څخه به خبر شي.
- په اقتصادي برخه کې به د فلزاتو پر اهميت وپوهيږي.
- د هېواد د فلزاتو او کانونو په هکله به معلومات تر لاسه کړي.
- د ودانيو جوړولو د ډبرو د کانونو او د هغو د اقتصادي اهميت په هکله به پوه شي.
- د هېواد کريمه احجار (قيمتي ډبرې) کانونه او د هغو اقتصادي ارزښت به وپيژني.

**زده کوونکي به د دغه څپرکي په لوستلو سره لاندېنيو مهارتي موخو ته ورسيږي:**

- زده کوونکي به وکولای شي چې د انرژۍ اهميت بيان کړي.
- د انرژۍ د ډولونو نومونه به واخېستلای شي.
- د فلزاتو اقتصادي اهميت به بيان او د هغو د کارولو مهم ځايونه به توضيح کړي.
- د هېواد د فلزاتو مهم کانونه به د نقشې پرمخ وښودلای شي.
- د ودانيو او ګرانبيه تيږو کانونه به وپيژندلای شي.
- د ودانيو د تيږو اقتصادي اهميت به توضيح کړي.

نهم لوست

## ۲، ۱ انرژي او د هغې اهمیت



۱۹- شکل: د لمریز اوبه تودوونکي (کلکتور) انځور

### د انرژۍ په هکله څه پوهیږئ؟

انرژي هغه ځواک یا قوت دی چې د هغې په وسیله په صنایعو، ماشینونو او صنعتي تولیداتو کې خوځښت را منځته کیږي.

زموږ په هېواد افغانستان کې د انرژۍ زیاتې سرچینې شته چې د ځمکې پرمخ او تر ځمکې لاندې موندل کیږي.

په اوسني وخت کې د افغانستان صنایع انرژۍ ته اړتیا لري، چې لوی او کوچني ماشینونه وګرځوي.

د یوې ټولنې د پرمختګ لپاره انرژي ډېر اهمیت لري، سوداګري، صنعت، لېږد او را لېږد او نورې حیاتي چارې نېغ په نېغه په انرژۍ پورې تړلې دي.

د انرژۍ مهمې سرچینې د ډبرو سکاره، نفت، ګاز، اوبه ، باد، لمر او نورې دي.

- په افغانستان کې د ډبروسکاره په تېره بیا په اوسني وخت کې انرژۍ یوه مهمه سرچینه ده، او د انرژۍ نورې سرچینې لکه نفت او ګاز قیمتي دي، نو ځکه د ډبرو سکاره د انرژۍ د یوې نسبتا ارزانه سرچینې په توګه د ارزښت وړ دي.

د ډبرو سکرو یوه برخه په صنعت کې او نورې برخې یې د سون توکو په توګه په کاریږي، نفت هم زموږ په هېواد کې د انرژۍ د تولید د یوې سرچینې په توګه ځانګړي ارزښت لري.

- هغه څېړنې چې د نفتو د پلټنې په برخه کې له ۱۳۱۵ هـ ل کال څخه راپدې خوا د افغاني او بهرنیو جیولوجیستانو له خوا ترسره شوي دي، په ډاګه کوي چې د هېواد په ډیرو سیمو په ځانګړې توګه، لکه: د شمال په برخو، لویدیځ او جنوب لویدیځ کې د نفتو زیرمې شته.

- د انرژۍ د تولید یوه بله سرچینه طبیعي ګاز دی. طبیعي ګاز په افغانستان کې له مهمو زیرمو څخه شمېرل

کیږي چې په هېواد کې دننه د لګښت او بهرته د صادرولو له مخې لوړ ارزښت لري. د کورونو له روښانولو او تودولو پرته په پخلي او د صنعتي کارځایونو په کار اچولو کې هم اهمیت لري زموږ په هېواد کې د اوبو له سرچینو د برېښنا انرژي ترلاسه کیږي، له برېښنا څخه د کورونو په روښانه کولو، پخلي او د برقي وسایلو په کار اچولو کې کار اخېستل کیږي. زموږ په هېواد کې د انرژۍ یو شمېر نور ډولونه هم شته، چې په ځینو کارځایونو کې ورڅخه کار اخېستل کیږي، ممکن په راتلونکي کې به په ټول افغانستان کې دود شي لکه:



۲۰ - شکل: د سولر انرژۍ انځور چې په هغه سره د لمر انرژي زیرمه کیږي

د لمریزې برېښنا Solar Energy دستګاوې لمریز پمپونه، د اوبو لګولو لمریز پمپونه او لمریز څراغونه، چې د لمر له انرژۍ څخه کار اخلي. د اوبو او انرژي وزارت په پام کې لري چې د اقتصادي امکاناتو په نظر کې نیولو سره د کونړ او کوکچې په سیندونو باندې د اوبو د برېښنا بندونه جوړ کړي.

له هغې انرژۍ څخه د کار اخېستلو اغېزمنتوب چې طبیعي نوې کیدونکې سرچینې لري، لکه لمر، اوبه او باد د سکرو او تیلو د لګښت په برخه کې سپما رامنځته کوي.

## د ټولګي دننه فعالیت

زده کوونکي دې دوه ډلې شي، لومړۍ ډله دې د انرژۍ او دویمه ډله دې په ورځني ژوند کې د انرژۍ د اهمیت په هکله خبرې وکړي او د ډلې استازی دې د خپلو خبرو پایله به نوروته ووایي.

## پوښتنې

۱. انرژي تعریف کړئ او دهغې مهمې سرچینې وښیئ.
۲. ولې د ډېرو سکاره د انرژۍ له مهمو توکیو څخه شمېرل کیږي؟
۳. د برېښنا د انرژۍ په تولید کې د اوبو د اهمیت په هکله معلومات ورکړئ.
٤. د انرژۍ اهمیت څرګند کړئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

تاسې په تېره شپه ـ ورځ کې له کوم ډول انرژۍ څخه کار اخېستی دی، د هغې په هکله معلومات ورکړئ چې له کومې سرچینې څخه ترلاسه، چیرته تولید او په څه ډول ستاسو په واک کې راغلې، په یوه پاڼه کې یې ولیکئ.

## ۲،۲ د انرژۍ د نوي کېدو او نه نوي کېدو وړ سرچينې (منابع)



۲۱- شکل: د سولر انرژي يا لمرېزې برېښنا يو انځور

د انرژۍ په هکله څه پوهېږې؟

د انرژۍ د نوي کېدو او نه نوي کېدو وړ سرچينې څه مفهوم لري؟

په طبيعت کې د انرژۍ دوه ډوله سرچينې شته: د انرژۍ هغه منابع (سرچينې) چې نوې کېږي او د انرژۍ هغه سرچينې چې د نوي کېدو وړتيا نه لري. دلته يې دواړه ډولونه په تفصيل سره لولو:

د انرژۍ د توليد د نوي کېدو وړ سرچينې هغو سرچينوته ويل کېږي چې په طبيعت کې په پوره اندازې سره مونډل کېږي لکه اوبه، باد او لمر چې تل زموږ په چاپېريال کې شته، پای ته نه رسېدونکې دي او بيا نوي کېږي.

د انرژۍ نه نوي کېدونکې منابع يا سرچينې هغو سرچينوته ويل کېږي چې وروسته تر يوې مودې د هغو زېرمې پای ته رسيږي لکه د ډبرو د سکرو، نفتو، او ګازو زېرمې، چې وروسته له يوې مودې څخه يې په کانونو کې زېرمې پای ته رسيږي او انسان نه شي کولای چې تل او پرله پسې توګه ورڅخه کار واخلي.

حرارتي انرژۍ چې د ډبرو سکرو، نفتو او ګازو له سوځولو څخه ترلاسه کېږي، د چاپېريال د ککړتيا او د ځمکې د ډېرو توديدو لامل ګرځي.

زموږ په هيوا د کې د انرژۍ دغه دواړه ډوله سرچينې لکه نوې کېدونکې او نه نوې کېدونکې تر کار لاندې دي.

په افغانستان کې ددې ترڅنګ چې د ډبرو د سکرو، نفتو او ګازو له نه نوي کېدونکو سرچينو څخه کار اخېستل کېږي، د انرژۍ د نوي کېدونکو سرچينو څخه هم کار اخېستل کېږي چې په دې کې يوهم اوبه د انرژۍ د نوی کېدونکو سرچينو يوه مهمه سرچينه ده.

هغه سيندونه چې مخ په ځوړ دي، د برېښنا د ترلاسه کولو لپاره ډېرې غوره سرچينې شمېرل کېږي چې د بندونو په جوړولو او د توربين په لګولو سره له هغو څخه برېښنا ترلاسه کولای شو.



۲۲- شکل    د لمریز دیگي انځور

له اوبو څخه ترلاسه کیدونکې برېښنا د ډېرو له سکرو، نفتو او ګازو څخه ارزانه ده. د اوبو برېښنا ځکه ارزانه په لاس راځي چې د اوبو د دايمي جريان څخه توليديږي. د برېښنا د توليد بله سرچينه باد دی. زموږ د هېواد په ځينو سيمو کې له باد څخه په ازمايښتي بڼه د برېښنا ترلاسه کول پيل شوي دي، ممکن په راتلونکې کې په ټول هېواد کې پراختيا ومومي.

د برېښنا د توليد بله سرچينه لمر دی چې په دې لړ کې لمريز کولکتورونه (اوبه اېشوونکې)، لمريز څراغونه، د پخلي ديګونه او نور يادولای شو، چې له لمر څخه په کار اخېستو سره يې ډېرې غوره پايلې ترلاسه شوي دي. د لمريزو کولکتورونو څخه په کار اخېستلو سره زموږ په هېواد کې هم د برېښنا په لګښت کې سپما کيږي او هم د چاپېريال د ککړتيا مخه نيول کيږي: په اوسني وخت کې د هېواد په ځينو ولايتونو کې د لمر له انرژۍ څخه کار اخېستل پيل شوي دي او کار ورباندې روان دی.



### د ټولګي دننه فعاليت

زده کوونکي دې دوه ډلې شي. لومړۍ ډله دې د انرژۍ په نوي کيدونکو سرچينو او دويمه ډله دې د انرژۍ په نه نوي کيدونکو سرچينو باندې خبرې وکړي او د ډلې استازی دې د خپلو خبرو پايله نوروته هم ووايي.



### پوښتنې

۱. د ډېرو سکرو، نفتو او ګازو سرچينوته ولې د انرژۍ نه نوي کيدونکې سرچينې وايي.

۲. د انرژۍ د بيلابيلو سرچينو نوم واخلئ.

۳. د انرژۍ کومو سرچينوته نه نوي کيدونکې سرچينې وايي ناسم ځواب په نښه کړئ.

الف. اوبه ب. د ډېرو سکاره ج. باد د. لمر

٤. نوي کيدونکی او نه نوي کيدونکی انرژي يو بل سره څه توپير لري؟



### له ټولګي څخه بهر فعاليت

که چيرې ستاسې د اوسيدو په سيمه کې د انرژۍ د نوي کيدو وړ سرچينې څخه کار اخېستل کيږي، د هغې په هکله چې توليد شوې انرژي له کومې سرچينې څخه ترلاسه کيږي او څرنګه توليديږي، معلومات راټول کړئ او خپلو ټولګيوالوته يې ووایاست.

## ۳،۲ برېښنا



۲۳- شکل
د سروبي د برېښنا د فابریکې تصویر

په افغانستان کې له برېښنا څخه د کومې موخې لپاره کار اخېستل کیږي؟

له برېښنا څخه د مهمې سرچینې په توګه په ټولو صنعتي او اقتصادي چارو، د ښارونو او کورونو په روښانه کولو او برقي وسایلو کې کار اخېستل کیږي. زموږ په هېواد کې له برېښنا څخه کار اخېستل د شلمې پیړۍ له لومړۍ نیمایي څخه پیل شوی دی او په صنعت او ټولنه کې یې ژور بدلون راوستی دی.

په افغانستان کې لومړی ځل د امیر عبدالرحمن خان د سلطنت پرمهال د برېښنا یوې کوچنۍ کارخانې په کار پیل وکړ چې د یوې ډینمو په بڼه وه او یوازې ځلوېښت څراغونه یې روښانه کول. دغې ډاینمو په ۱۲۷۲ هـ . ل کال په کار پیل وکړ او د ارګ د روښانه کولو لپاره ورڅخه کار اخېستل کیده.

وروسته په ۱۲۷۵ – ۱۲۷۷ هـ . ل کې یو شمېر نورې د برېښنا کوچنۍ دستګاوې چې د بړاس په انرژۍ یې کار کاوه، یو په بل پسې په کار ولوېدې. په ۱۲۹۰ هـ . ل کې په جلال آباد کې د ۱۹ کیلوواټه په قدرت د برېښنا یو ماشین د بړاس په واسطه په کار پیل وکړ او وروسته په پغمان کې په ۱۲۹۶ هـ . ل کال کې د ۱۵ کیلوواټه په ور تیا له بړاس څخه د برېښنا د تولید یوه کوچنۍ دستګاه په کار واچول شوه.

په افغانستان کې د برېښنا د ترلاسه کولو لپاره د برېښنا له بندونو څخه هم کار اخېستل کیږي.د برېښنا هغه بندونه چې په هېواد کې جوړ شوي دي، له څلوېښتو کلونو را په دې خوا یې کوم پرمختګ نه دی کړی، نو ځکه د هېواد اوسنۍ اړتیا نه شي پوره کولای.

په اوسني وخت کې چې د ښارونو نفوس ډېر زیات شوی دی. برېښنا ته د خلکو ورځ په ورځ زیاتېدونکې اړتیا هم ډېره شوې ده. د برېښنا د ماستر پلان له مخې، افغانستان د ۲٤۰۰۰ میګاواټه برېښنا وړتیا لري،



۲٤ - شکل

د سروبي د برېښنا د فابريکې تصوير

چې په هغې کې ۲۳۰۰۰ ميګاواټه يې د اوبو برېښنا او پاتې نوره يې حرارتي برېښنا ده چې د طبيعي ګاز، د ډبرو سکرو او نفتو له سرچينو څخه يې ترلاسه کول په پام کې نيول شوي دي. د هغې توليدول او پرمختګ ډېرې زياتې پانګې ته اړتيا لري. افغانستان د برېښنا د انرژۍ د توليد د چټکوالي سره سره، د نړۍ او ګاونډيو هېوادو پرتله وروسته پاتې دی.

په ۱۹۷٦ م کال کې په نړۍ کې په منځنۍ توګه په يوه ساعت کې د برېښنا د سړي سر توليد اندازه ۱۷۱٤ کيلوواټه وه، په همدې کال کې په افغانستان کې د هرتن لپاره د برېښنا د انرژۍ توليد په يوه ساعت کې ٤۱ کيلوواټه و، چې د نړۍ پرتله ٤۲ ځله کم ګڼل کيږي. زموږ په هېواد کې د اوبو برېښنا انرژي د برېښنا د بندونو په جوړولو سره ترلاسه کيږي چې يو شمېر پروژې يې دادي: د نغلو د برېښنا بند، د سروبي د برېښنا بند، د ماهيپر د برېښنا بند، د درونټې د برېښنا بند، د کجکي او جبل السراج د برېښنا بند چې وروسته به پوره خبرې وربانديې وشي.

## د ټولګي دننه فعاليت

زده کوونکي دې په خو ډلو وويشل شي، هره ډله دې په ورځني ژوندکې د برېښنا د اهميت په هکله خبرې وکړي او د خپلو خبرو پايله دې د ډلې استازی نورو ته واوروي.

## پوښتنې

۱. د برېښنا لومړنی دستګاه د کوم پاچا پرمهال او په کوم ځای کې جوړه شوه؟
۲. له برېښنا څخه په کومو چاروکې کار اخېستل کيږي؟
۳. افغانستان د څومره ميګاواټه اوبو برېښنا ورتيا لري او پاتې د اړتيا وړ برېښنا به په هېواد کې له کومو سرچينو څخه ترلاسه شي؟
٤. د هېواد د نامتو بندونو نومونه واخلئ.

## له ټولګي څخه بهر فعاليت

ستاسې په ښوونځي او کور کې برېښنا شته که نه؟ که وي، له کومې سرچينې څخه ترلاسه کيږي، د هغې مياشتنی لګښت اوبيه څومره ده، هغې په اړه معلومات راټول او په بل راتلونکي ساعت کې د هغې په اړه خبرې وکړئ.

## دولسم لوست

## الف _ د اوبو برېښنا



۲۵- شکل: د نغلو د اوبو د برېښنا د تولید فابریکه

په افغانستان کې د اوبو د برېښنا بندونه پرکومو سیندونو جوړ شوي او زموږ د خلکو پر اقتصادي ژوند باندې کومې اغیزې لري؟

د شلمې پیړۍ له نیمایي را وروسته په صنعت او د بشریت د ژوند په نورو برخو کې برېښنا د انرژۍ د یوې مهمې سرچینې په توګه پېژندل شوې ده او د هغې ترلاسه کول او لګول په چټکۍ پرمخ تللي دي.

د برېښنا د ورځ په ورځ زیاتیدونکي ارزښت له مخې دافغانستان د روانو اوبو سروې ترسره شوې ده او داسې ویل شوي دي چې افغانستان د سیندونو په بهیر کېد زیاتو ځوړونو د لرلو له کبله، څه ناڅه پر هریوه سیند باندې د برېښنا د بندونو د جوړولو ډیرښه امکانات لري. په حقیقت کې د افغانستان سیندونه د برېښنا د ترلاسه کولو لپاره تر ټولو اقتصادي سرچینې دي.

د هغو لومړنیو سروې ګانو او څېړنو د پایلې له مخې چې د برېښنا د تولید په برخه کې ترسره شوې، داسې ښکاري چې د افغانستان له سیندونو څخه په هر ساعت کې ۲.۵ میلیونه کیلوواټه برېښنا ترلاسه کیدای شي، خو اوس دغه سرچینې ډیرې لږ ترکار لاندې دي. په اوسني وخت کې برېښنا نه یوازې له سیندونو څخه بلکې له حرارتي سرچینو لکه د ډبرو له سکرو، نفتو او ګازو څخه هم ترلاسه کیږي. افغانستان د اوبو د برېښنا د تولید بېلا بېلې دستګاوې لري چې په لاندې توګه دي:

### ۱) د جبل السراج د برېښنا فابريکه

د جبل السراج د برېښنا دستگاه د سالنگ پر سيند باندې جوړه شوې ده، له توربين سره يوځاى يې لوړوالى ۳۷ متره دى. هغه اوبه چې په توربين باندې راځي په يوه ثانيه کې لس متره مکعبه دي. د جبل السراج ددستگاه د جوړولو کار په ۱۲۹٤ هـ . ل. کال کې پيل اوپه ۱۲۹۹ هـ . ل. کې بشپړ شو. درې توربينونه لري چې مجموعي ظرفيت يې ۱۵۰۰ کيلوواټه دى. ددغې دستگاه استهلاکي دوره پوره شوې د ه او بيارغاونې ته اړتيا لري، خو بياهم دوه توربينونه يې کارکوي. د جبل السراج له برېښنا څخه د جبل السراج او چاريکارو د ښارونو په روښانه کولو او د گلبهار د فابريکې په کار اچولو کې کار اخېستل کيږي.

### ۲-د وردگو د چک د برېښنا بند

د چک د برېښنا بند د جوړولو کار په ۱۳۱٦ هـ.ل کال د غوايي په مياشت کې د ۱۵ ميليونه افغانيو په لگښت سرته ورسيد. دا بند ۳۰۰ متره اوږدوالى ۱۳ متره پنډوالى اوپه کښتنى برخه کې ۹ متره جگوالى او د شرشرې جگوالى يې ۲۷ متره دى چې ٤۰۰۰ متره اوږده نهر څخه په گټه اخېستنه ۱۷ متره مکعبه اوبه په ثانيه کى درى توربينونه چې ۳۳۰۰ کيلواټه توان لرى فعالوي. لاس ته راغلې برېښنا د هوايي سيم په وسيله د ۵۵ کيلو مترو په اوږدالى او د ۵۵ ستنو په وسيله کابل ته ليږدول شوى و. بايد وويل شي چې د نومو‌ړې دستگاه د برېښنا لاس ته راوړنه نظر د اوبو اندازى ته فرق کوي.

### ۳) د پلخمري د برېښنا بند

دغه بند په ۱۳۲۰ هـ . ل کال د کندز پر سيند باندى جوړ شوې چې د برېښنا لوړ ظرفيت يې په يوه ساعت کې ٤۸۰۰ کيلوواټه دى. په ۱۳۳٦ هـ . ل. کې د پلخمري لومړۍ او دويمه دوه نورې دستگاوې هم په يوه ساعت کې د ۹۰۰۰ کيلو واټه ظرفيت په لرلو سره د پخواني شوروي اتحاد د متخصصينو له خوا جوړې او په ۱۳٤۱ هـ . ل. کې يې په کار پيل وکړ. په اوسني وخت کې د پلخمري د برېښنا د بند توربينونه بيارغول شوي دي او تر گټې اخېستنې لاندې دي. د هغه له برېښنا څخه د بغلان د نساجي په فابريکې، سيلو، د موټرو د ترميم په فابريکې او د پلخمري او بغلان ښار په روښانه کولو کې کار اخېستل کيږي.

### ۴) د کجکي د برېښنا بند

د هلمند د ولايت د کجکي په ولسوالى کې د برېښنا د توليد يوه لويه دستگاه ده چې له کندهار ښارڅخه ۱۵۰ کيلومتره شمال لوېديځ کې ده. په دغې ولسوالۍ کې د هېواد د برېښنا تر ټولو لويه دستگاه په پام کې نيول شوې وه چې د برېښنا د توليد ظرفيت يې ۱۲۰۰۰۰ کيلو واټه اټکل شوى و. د جوړولو کار يې په ۱۳۳۰ هـ . ل. کې پيل اوپه ۱۳۳۲ هـ . ل. کې بشپړ شو. په کجکي

کې د برېښنا د تولید اوسنی دستگاه په یوه ساعت کې ۳۳۰۰۰ کیلوواټه برېښنا تولیدولای شي چې د کندهار ښار، هلمند، لښکرگاه ښار او گرشک، سنگین، کجکي او د موسی کلا ولسوالیو او د همدغو سیمو په صنعتي تاسیساتو کې لگول کیږي. له دې کبله چې ډېر کلونه ورڅخه کار اخېستل شوی دی، توربینونه یې استهلاک شوي دي خو په دې وروستیو کې د امریکې د متحده ایالاتو د پرمختیایي ادارې په مرسته بیارغول شوي دي.

## ۵) د سروبي د اوبو د برېښنا بند

د سروبي د اوبو د برېښنا دستگاه په سروبي کې د کابل د سیند د پاسه، د کابل سیند سره د پنجشیر د سیند د یو ځای کېدو په ۱۵ کیلومتري واټن کې، د سمندر له سطحې څخه د ۱۵۹۶ مترو په لوړوالي کې جوړه شوی ده. دغه دستگاه دوه توربینونه لري چې د هر توربین د برېښنا د تولید اندازه په یوه ساعت کې ۱۱۰۰۰ (د دواړو یې ۲۲۰۰۰) کیلوواټه کیږي. د جوړولو کارېې په ۱۳۳۰ هـ .ل. کال کې پیل او په ۱۳۳۶ هـ .ل. کال کې پای ته ورسید. د سروبي د برېښنا دستگاه دوه ښیگڼې لري: لومړی داچې د کابل ښار او صنعتي مرکزونو ته نژدې ده او بل داچې د وربښمو د تنگي په برخه کې د کابل پر سیند باندې جوړه شوې ده چې په پوره اندازه اوږدوالی او ځوړلري چې د دغې ځانگړتیا په لرلو سره په هر څو کیلومتره واټن کې طبیعي ځوړ جوړوي او د وربښمو د تنگي په برخه کې ورڅخه ډېر کار اخېستل کیږي.

د اوسني وخت په پسرلي د سروبي په برخه کې د کابل د سیند دبت په پسرلي کې په یوه ثانیه کې ۷۴ متر مکعبه اوبه دي. سربېره پر دې دغه سیند په کال کې اووه میاشتې پوره اندازه اوبه لري، خو په پنځو نورو میاشتو یعنې له تلې څخه ترکب میاشتې پورې د کابل د سیند اوبه کمېږي. له همدې امله د سروبي ددغې دستگاه اوسنی وړتیا په یوه ساعت کې ۲۲۰۰۰ کیلوواټه ده. د سروبي د اوبو د برېښنا د توربین د بیارغونې قرارداد له جرمني زیمنس کمپنۍ سره شوی کارېې بشپړ او تر استفادې لاندې دی. د سروبي له برېښنا څخه د کابل ښار د روښانه کولو، د گلبهار د فابریکې او د مرکز د یو شمېر نورو صنعتي مؤسسو د فعالیت په خاطر کار اخېستل کیږي.

## ۶) د ماهیپر د برېښنا فابریکه

نوموړې فابریکه د کابل ښار ختیځ ته په ۴۰ کیلومتره واټن کې د دریو توربینونو په لرلو سره د کابل پر سیند جوړه شوې چې هر توربین یې په یوه ساعت کې ۲۲۰۰۰ (ټول ۶۶۰۰۰) کیلوواټه د برېښنا تولید لري. د جوړولو کارېې په ۱۳۳۱ هـ . کال. پیل او په ۱۳۴۵ هـ . کال. کې بشپړ شو او گټې اخېستل ورڅخه پیل شول. دا یوه موسمي فابریکه ده. د اوبو د زیاتوالي پرمهال فعاله، خو د اوبو د کمښت پرمهال ولاړه وي. دغه فابریکه د اوبو راگرځولو بند لري خو د اوبو زېرمه نه لري، کله چې په اوړي کې د سیند اوبه لږې شي، دغه فابریکه پرچاوېږي، خو په ژمي او پسرلي کې بیرته په کارېاندې

پیل کوي. د دغې فابریکې د بیارغاوونې قرار داد د جرمني د زیمنس کمپنۍ سره لاسلیك شوی او اوس تر ګټې اخېستنې لاندې ده.
له برېښنا څخه یې د کابل په ښار کې استفاده کیږي.

## ۷) د درونټې د برېښنا فابریکه

د ننګرهار په ولایت کې ددغې فابریکې د جوړولو کار په ۱۳۳۹ هـ .ل. کال پیل او په ۱۳٤۳ هـ .ل. کې بشپړ او ګټه اخېستنه یې پیل شوه. دغه فابریکه درې توربینونه لري چې د برېښنا د تولید ټول ظرفیت یې په یوه ساعت کې ۱۲۰۰۰ کیلوواټه دی. اوس یې د استهلاک دوره بشپړه شوې، خو بیاهم د اقتصادي موجود حالت له کبله کار ورڅخه اخېستل کیږي. تخنیکي وضعیت یې د اضافي پرزو د نشتوالي له کبله د اندیښنې وړدی، خو د فابریکې عادي سمون کله کله ترسره کیږي.
د جلال آباد په ښارکې ګڼ شمېر کورنۍ ترې کار اخلي. په اوسني وخت کې چې د جلال اباد د ښار نفوس ورځ په ورځ مخ په زیاتیدو دی، موجوده برېښنا یوازې په سلوکې ۳۰ وګړو او صنایعو ته بسیا ده. خو پاتې خلك له وارداتي برېښنا څخه ګټه اخلي.
ددغې فابریکې له تولید شوې برېښنا څخه د جلال آباد ښار د روښانه کولو، صنعتي موسسو او د ۳۲۵۰۰ جریبه ځمکې د اوبو د پمپ کولو لپاره کار اخېستل کیږي.

## ۸) د نغلو د برېښنا د بند فابریکه

د نغلو د اوبو د برېښنا د تولید فابریکه د افغانستان د برېښنا د تولید تر ټولو لویه فابریکه ده چې د کابل ښار ختیځ ته د ۷۰ کیلومترو په واټن کې جوړه شوې او څلور توربینونه لري چې ټوله وړتیا یې په یوه ساعت کې ۱۰۰۰۰۰ کیلوواټه کیږي.
د نوموړي بند د جوړولو کار په ۱۳۳۹ هـ . ل. کال پیل او په ۱۳٤٦ هـ . ل. کال بشپړ او د ګټې اخېستو وړ وګرځید.
د دغې پروژې بنسټې موخه له یوې خوا د سروبي د اوسنیو او نورو وروستیو فابریکو لپاره د اړتیا وړ اوبو زیرمه کول اوویشل اوله بلې خوا د کابل د حوزې لپاره د برېښنا تولید و. د نغلو د اوبو اصلي سرچینه د کابل او پنجشیر سیندونه دي. د زیاتو کلونو په تېریدو سره د نغلو د برېښنا د بند د فابریکې وسایل زاړه شوي دي، د هغې د بیا رغونې د کار پرمخ بیول له یوې روسي کمپنۍ سره لاسلیك شوي او پرمخ روان دی.

## د ازبکستان د برېښنا شبکه

د ازبکستان د برېښنا د پروژې غځول په ۱۳۸۶ هـ.ش. کال کې پیل، وروسته کابل ښار او ځینو نورو ولایتونوته وشول، فعالیتونه یې په لاندې ډول دي.

الف: ۱- له ازبکستان څخه تر حیرتانو پورې د ۵۳ کیلو مترو په اوږدوالي د ۲۲۰ کیلو واتو د بل سرکت مزي غځول او د برېښنا لیږدول.

۲- د مزار شریف له نایب آباد څخه ۲۲۰ کیلو واته د بل سرکت مزي د ۲۳ کیلو مترو په اوږدوالي غځول او د برېښنا لیږدول.

۳- له نایب آباد څخه تر پلخمري پورې د ۱٦٤ کیلو مترو په اوږدوالي ۲۲۰ کیلو واټه برېښنا مزي غځول او دبرېښنا لیږدول چې په ۱۳۸۷ هـ.ش کال کې بشپړ شول او ۳۰۰ میګا واټه برېښنا لري.

ب: ۱- له پلخمري څخه کابل ته د ۲۰۲ کیلو مترو په اوږدوالي د ۲۲۰ کیلو واټو د دبل سرکت د برېښنا د مزي غځول او د برېښنا لیږدول، د چمتلې دښته کې د ۳۲۰ میګا واټه امپیر په ظرفیت د ۲۲۰/۱۱۰ کیلو واټو سب ستیشن دودانۍ جوړیدل.

له حیرتانو څخه تر کابله پورې د نوموړي مزي په غځولو کې (۱۳۸۳) اوسپنیزې کتاره لرونکې پایې (ستنې) کارول شوي دي.

په سالنګونو کې هم ځینې ستنې ۳۸۰۰ متره د بحر له سطحې لوړې درول شوي دي. چې تر یوه بریده پورې په کابل ښارکې د خلکو اړتیا بشپړوي.

لاندینی جدول د ډیزلي، آبي او حرارتي برېښنا د تولید او تورید اندازه ښیي (په یوه ساعت کې ۱۰۰۰ کیلوواټه)

| کلونه | د اوبو برېښنا | حرارتي برېښنا | ډیزلي برېښنا | له بهر څخه واردیدونکې برېښنا |
|---|---|---|---|---|
| ۱۳۸۲ | ٦۳۱،۷ | ۱۹٤،۰ | ۰،۰۱ | — |
| ۱۳۸۳ | ٥٦٤،٥ | ۲۱٥،۱ | ۳،۱ | — |
| ۱۳۸٤ | ٦۷۱،۳ | ۲۳٥،۱ | ۱،۰ | ۱۳٦،٥ |
| ۱۳۸٥ | ٦٤٥،۹ | ۲٦۷،۳ | ٤،۰ | ٥۹٤،۱ |
| ۱۳۸٦ | ٦۸۳،۸ | ۲٦٦،٥ | ٥۷،۰ | ۷۸٤،۷ |



## د ټولګي دننه فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو وویشل شي: یوه ډله دې د نغلو او سروبي او بله ډله دې د درونټې او ماهیپر او دریمه ډله دې د جبل السراج او پلخمري د برېښنا د بند د ازرښت په هکله خبرې وکړي او پایله دې خپلو نورو ټولګیوالوته ووایي.



## پوښتنې

۱. د افغانستان تر ټولو پخوانی د برېښنا د تولید فابریکه کومه یوه ده او کلنی ظرفیت یې څومره دی؟

۲. د سروبي او ماهیپر په فابریکه کې له تولید شوې برېښنا څخه چیرته کار اخیستل کیږي؟

۳. د نغلو د پروژې اساسي موخې او هدفونه بیان کړئ.

٤. د افغانستان له سیندونو څخه د ترلاسه کیدونکې برېښنا اندازه څومره اټکل شوې ده؟

۵. د ازبکستان د برېښنا مزي په څه وخت بشپړ او څومره میګاواټه ظرفیت به ولري؟

په لاندېنیو څلورو ځوابونو کې یې سم ځواب په نښه کړئ.

الف. په یوه ساعت کې ۱،۸ میلیون کیلوواټه ب. په یوه ساعت کې ۲،۵ میلیون کیلوواټه

ج. په یوه ساعت کې ۳،۵ میلیون کیلوواټه د. په یوه ساعت کې ۱،۵ میلیون کیلوواټه



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

لاندنی جدول په ترتیب سره په خپلو کتابچو کې بشپړ کړئ.

| د سابقې له مخې | د ظرفیت له مخې |
| --- | --- |
| د جبل السراج د برېښنا فابریکه | نغلو |
| | |
| | |
| | |
| | |
| | |

## ب ـ حرارتي برېښنا



آیا په افغانستان کې له حرارتي برېښنا څخه کار اخېستل کیږي؟

۲۶- شکل: د کابل په ښار کې د حرارتي برېښنا د فابریکې یو تصویر

حرارتي برېښنا چې معمولاً د ډېرو سکرو، نفتو او ګازونو له سوځولو تر لاسه کیږي، په افغانستان کې د برېښنا د تولید ښه سرچینه ده چې د اوبو له برېښنا څخه وروسته په دویمه درجه کې د استفادې وړ ده.

د ډیزلي برېښنا لومړنۍ فابریکه په ۱۳۵۱ هـ . ل کال په کابل کې جوړه شوه، یو کال وروسته بیا یوه بله کوچنۍ فابریکه په یوه ساعت کې د ۳۰۰ کیلو واټو په ظرفیت د کندهار د وړۍ اوبدلو د فابریکې لپاره جوړه شوه. همدارنګه په ۱۳۳۱ هـ . ل کال کې د ډیزلي برېښنا د تولید دوه ماشینونه د ۵۰۰ کیلوواټو په ظرفیت د هرات په ښار کې په کار اچول شوي وو. د انرژۍ او اوبو د وزارت د ۱۳۸۵هـ . ل کال د راپور له مخې د افغانستان د حرارتي برېښنا د ټولو فابریکو ظرفیت په یوه ساعت کې ۴۲.۷ زره کیلوواټو ته رسیده چې د ټول هېواد د برېښنا فابریکو په سلوکې ۱۲.۵ یې جوړاوه. په اوسني وخت کې کوچنۍ ډیزلي فابریکې په ځینو ښارونو او ولایتونو لکه په مزارشریف، شبرغان، تخار، هرات، غزني او کابل کې د برېښنا مهمې وسیلې شمېرل کیږي. چې د سون توکي یې تیل او په ځینو ځایونو کې ګاز دي دلته به دافغانستان د حرارتي برېښنا په فابریکو باندې خبرې وشي.

### ۱ـ د مزارشریف د حرارتي برېښنا فابریکه

د هېواد حرارتي برېښنا تر ټولو لویه فابریکه ده چې د مزارشریف د ښار د لویدیځ په ۲۰ کیلومتري واټن کې موقعیت لري او په هغې کې هغه ګاز سوځول کیږي چې د جوزجان څخه په نل لیکه کې رالیږدول کیږي. دغه فابریکه په ۱۳۴۳ هـ . ل کال کې د یوه روسي انستیتوت له خوا د هغه وخت د کانو او

صنایعو وزارت په غوښتنه جوړه شوه.
د نوموړې دستگاه ظرفیت په یوه ساعت کې ۳۶ زره کیلو واټه دی چې د طبیعي گازو درې توربینونه لري او تر ۴۸ زره کیلوواټو پورې د زیاتولو ورتیا هم لري. ددغې فابریکې ۲۴ زره کیلوواټه برېښنا د کیمیاوي سرې د فابریکې لپاره او ۱۲۰۰۰ کیلوواټه نوره برېښنا یې د مزارشریف د ښار د روښانه کولو لپاره په پام کې نیول شوې وه.

## ۲ـ د هرات او کندهار د ښارونو د حرارتي برېښنا فابریکې

د کندهار په ښار کې د ۳۰۰۰ کیلوواټو په ظرفیت د حرارتي برېښنا فابریکې په کار پیل کړی و چې اوس یې ظرفیت ۱۲۰۰۰ کیلوواټه دی او په راتلونکې کې به نورهم لوړ شي. د هرات د برېښنا حرارتي دستگاه په یوه ساعت کې ۱۲۰۰۰ کیلوواټه ظرفیت لري چې له ډیزلو پرته په هغې کې د ډبروسکاره هم سوځول کیږي.

## ۳ـ د کابل د برېښنا حرارتي فابریکه

دغه فابریکه د کابل د ښار په شمالي برخه کې د خیرخانې مینې د غاښي ترخنگ جوړه شوې ده، له دې امله چې د کابل په حوزه کې د اوبو کمښت تر سترگو کیده نو د دغې فابریکې د جوړولو کار په ۱۳۵۵هـ . ل. کال پیل او په ۱۳۵۷هـ . ل کال کې بشپړ شو. نوموړې فابریکه د ۴۵ زرو کیلوواټو په ظرفیت سره د نړیوال بانک په مالي مرسته بیا ورغول شوه چې د کابل ښار په سلوکې ۴۰ برېښنا بشپړوي، خو له ازبکستان څخه د واردې شوې برېښنا په راتگ سره دغه فابریکه پرچاوه شوې ده چې دوه توربینونه لري او د سون توکي یې ډیزل دي.
د کابل د ښار ختیځ ته د هودخیلو په سیمه کې د برېښنا یوه بله حرارتي فابریکه په یوه ساعت کې د ۴۳،۶ زره کیلوواټو په ظرفیت جوړه شوې وه، خو د کورنیو جگړو له کبله ویجاړه شوې وه، د هغې د سمون اوبیارغونې قرارداد د سویزرلنډ د هېواد له Alston کمپنۍ سره شوی چې د دریم او څلورم توربین جوړول یې په پام کې دي.
باید وویل شي چې د حرارتي برېښنا یو شمېر نورې پروژې هم زموږ په هېواد کې په نظر کې نیول شوي چې په دې لړکې د شبرغان د توربین د گازونو د تولید پروژه یادولای شو.
دغه پروژه به د امریکې د متحده ایالاتو د پرمختیایي ادارې په مالي مرسته د ۱۰۰ـ۱۵۰ میگاواټو په ظرفیت په راتلونکې کې جوړه شي.

# مرستندوی اضافي معلومات

( ۳ ) جدول: په بیلابیلو حوزو کې د برېښنا د تولید د ظرفیتوېشنه

| ګڼه | حوزه | ناصبه ظرفیت (په زروکیلوواټو) | سلنه |
|---|---|---|---|
| ۱ | کابل | ۲۴۹,۲ | ۶۲,۹ |
| ۲ | ننګرهار | ۱۳,۹۶ | ۳,۵ |
| ۳ | پلخمری ـ بغلان او کندوز | ۲۲,۶۷ | ۵,۹ |
| ۴ | مزارشریف ـ بلخ | ۴۲,۸۲ | ۱۰,۸ |
| ۵ | شبرغان | ۲,۰۸ | ۰,۵ |
| ۶ | هرات | ۵,۳۹ | ۱,۳ |
| ۷ | کندهار ـ هلمند | ۴۳,۷۰ | ۱۱ |
| ۸ | غزنی | ۱,۰۴ | ۰,۳ |
| ۹ | نورې حوزې | ۱۴,۹ | ۳,۸ |
| ټول | | ۳۹۵,۹ | ۱۰۰ |

**سرچینې**: د اوبو او انرژۍ د وزارت راپور، د ۱۳۸۵ کال د تلې میاشت، ۳۷ مخ



## د ټولګي دننه فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي، هره ډله دې د حرارتي برېښنا په اهمیت او د یوې فابریکې په هکله خبرې وکړي او دخپلو خبرو پایلې دې نوروته وو‌ايي.



## پوښتنې

۱ . د افغانستان د حرارتي برېښنا تر ټولو لویه فابریکه چیرې ده او له برېښنا څخه یې په کومو ځایونو کې کار اخېستل کیږي؟

۲ . په اوسني وخت کې د افغانستان د ډیزلي برېښنا د کوچنیو فابریکو نومونه واخلئ.

۳ . د کابل د حرارتي برېښنا فعاله فابریکه چیرې او په کوم ظرفیت فعالیت لري او د کابل د برېښنا ټوله څومره برخه بشپړوي؟

٤ . د کابل د ختیځ د حرارتي برېښنا په هکله خپل معلومات ووایاست.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

ولې د اوبو د برېښنا پرځای له حرارتي برېښنا څخه کار اخلي او د اوبو د برېښنا او د حرارتي برېښنا ښیګڼې له یو بل سره پرتله کړئ خپل معلومات په راتلونکي ساعت کې ټولګیوالو ته ووایاست.

## ۴،۲ د ډبرو سکاره او زموږ په هېواد کې دهغو کانونه




۲۷- شکل: د کانې منابعو (سرچينو) يوتصوير د افغانستان د کاني سرچينو (منابعو) نقشه وگورئ.

د ډبرو سکرو زیرمې د افغانستان په کومو سیمو کې دي؟

د ډبرو سکاره د انرژۍ د تولید یوه مهمه سرچینه ده په تېره بیا په اوسني وخت کې چې د نفتو او گازو بیې مخ په لوړېدو دي، ډبرو سکاره د انرژۍ د تولیدوونکې سرچینې په توگه یوځه ارزانه دي، نوځکه یې اهمیت زیات دی. د ډبرو سکرو را ایستل له ډېر پخوا څخه په افغانستان کې معمول و.

د افغانستان د ډبرو سکرو د زیرمو په هکله څېړنې لومړی ځل په ۱۳۲۰ هـ . ل کال د هندي جیولوجیستانو د هیئات له خوا د کهمرد، اشپشتې، صوف درې او تاله او برفک په سیمو کې وشوې. له هماغه وخت څخه وروسته د ډبرو سکرو کارول ورو ورو پيل شول خو له دویمې نړیوالې جگړې څخه وروسته ترې کار اخېستل ډېر پراخه شول او کالنی تولید یې له ۱۲۰ څخه تر ۱۶۰ زرو ټنو پورې لوړ شو.

پرته له دې چې د هېواد په بیلابیلو سیموکې د ډبرو سکرو کوچنۍ زیرمې شته، په شمال کې د ډبرو سکرو ډېرې لویې زیرمې دي چې پراخه سیمه یې نیولې ده. دغه سیمه له تخار څخه تر هرات پورې غځیدلې چې ۳۵ زره کیلومتره مربع کیږي. د افغانستان د ډبرو سکرو هغه اندازه چې په اشپشته، کرکر، بنگې (د خان اباد د ښار د جنوب په لس میلي کې)، کرخ، سبزکو او صوف دره کې تثبیت شوي دي، ۲۰۰ میلیونو ټنوته رسیږي. د افغانستان د ډبرو سکاره ډېر غوره کیفیت لري او ډېر کار ورڅخه اخېستل کیدای شي. زموږ په هېواد کې له کانونو څخه د ډبرو سکرو د را ایستلو کار د سیمو

د غرني حالت او د لارو د نشتوالي له امله يوځه ستونزمن او په لومړيو پړاوونو کې دي، نو ځکه يې را ايستل او بيه ګرانه پريوځي، خو سره له هغه هم د ډبرو سکاره د سون توکو په توګه لوړ ارزښت لري.

د افغانستان د ډبرو سکرو توليدات زياتره د کرکر او اشپشتې له کانونو څخه دي چې د ټول هېواد په سلو کې ۹۰ برخه جوړوي. د توليد شوو ډبرو سکرو څخه په سلو کې ۷۷ په صنعتي کارځايونو کې د سون او پاتې نور يې د کورونو د تودولو لپاره په کاريږي.



په افغانستان کې د ډبرو سکرو بيلابيل ډولونه شته چې ځينې سيمې يې په لاندې توګه ښودل کيږي:

۲۸- شکل

د ډبرو د سکرو د کان يو انځور

## الف ـ د صوف درې د دبرو سکرو کان

د صوف درې کان د لرغونتوب او خپلو ځانګړتياوو له مخې د افغانستان د نورو سيمو پرتله لومړيتوب لري او په سمنګانو ولايت کې د ډبرو سکرو يو ډېر لوی کان ګڼل کيږي، زيرمې يې ۷٤ ميليونو ټنو ته رسيږي. ددغې سيمې د ډبرو سکرو کان لوړ جنسيت لري، تودوخيزه انرژي يې ډېره او د کاربن سلنه يې لوړه ده.

له دغو کانونو څخه لکه څنګه چې په کار ده، ګټه نه ده اخېستل شوې، لاملونه يې دادي چې يو خو له صنعتي مرکزونو څخه لرې دي او بل دا چې د ليږدولو وسايل محدود او امکانات په واک کې نشته دي.

ددغه کان يوه اندازه سکاره کابل ته ليږدول کيږي او پاتې نور يې د بلخ ولايت ته ځي.

### ب ـ د آشپشتې د ډبرو سکروکان

دغه کان د پلخمري د صنعتي ښار جنوب ته په ۱۱۰ کیلومتره واټن کې د بغلان ولایت د سیغان په دره کې واقع دی. له دو آب او میخ زرین څخه ۲۰ کیلومتره واټن لري. ددغه کان د ډبرو سکاره د کمیت او کیفیت له پلوه ډیر ارزښت نه لري، داځکه چې د طبیعي جوړښت له مخې پیچلي او د هغو د را ایستلو په برخه کې ستونزې شته. ددغه کان د سکرو زیرمې د ۵۰۰ زرو ټنو په شاوخوا کې اټکل شوې دي، خوبیاهم له دې امله چې دغه کان د ښکاري درې د پخواني سړک ترڅنګ و، نو ځکه له ډیرې مودې راهیسې کار ورڅخه اخېستل کیږي. ددغه کان د ډبرو له سکرو څخه د دولتي ادارو، روغتونونو او کابل ښار لپاره کار اخېستل کیږي.

### ج ـ د کرکر د ډبرو سکرو کان

د کرکرو کان د پلخمري ښار څخه لس کیلومتره لیرې جنوب ختیځ ته د کرکر له غره سره پروت دی. ددغه کان د ډبرو سکرو ټوله اندازه چې هر پوړ یې دوه یا درې متره پریړوالی لري ۱۵ میلیونه ټنه ښودل شوې ده. د سکرو جنسیت یې ښه او د کار اخېستو وړ دی. دغه کان په ۱۳۸۵ هـ .ل کال کې د غوري سمنټو له فابریکو سره یوځای خصوصي سکتور ته ورکړل شو چې له دغو سکرو څخه د غوري سمنټو د تولید لپاره کار واخېستل شي.

په ۱۳۸۷ هـ . ل کال کې د دغه کان له ۳۸۰۰ ټنو څخه زیات سکاره ایستل شوي دي. نوموړی کان د پلخمري صنعتي مرکزونوته نژدې دی او له بلې خوا د کابل ـ کندوز د لویې لارې په خواکې دی، نو ځکه یې اهمیت زیات دی او د هرې ورځې تولیدات یې په منځنۍ توګه له ۳۰۰ څخه تر ۴۰۰ ټنو پورې کیږي.

له دغه کان څخه ایستل شوي سکاره د پلخمري د سمنټو جوړولو په فابریکه، بټیو او په کابل کې کارول کیږي.

### د ـ د هرات د سبزک د مسجد چوبي د ډبرو سکرو کان

دغه کان د هرات ولایت شمال ختیځ کې د ۱۱۰ کیلومترو په واټن د سبزک غاښي څخه لاندې د کرخ دسیند پورته خواته موقعیت لري، اکتشافي او ساختماني چارې یې د چکي متخصصینو په مرسته ترسره شوې، زیرمې یې ۹،۵ میلیونه ټنه ښودل شوي دي. دغه کان په ۱۳۸۶هـ . ل کې خصوصي سکتور ته وسپارل شو، کلنۍ تولید یې ۴۰ زره ټنه او کلني عواید یې ۲۰ میلیونه افغانۍ دي. همدا اوس فعال او تر ګټې اخېستنې لاندې دي. د دغې سیمې د ډبرو سکرو جنسیت غوره او لوړه تودوخیزه (حرارتي) انرژي لري. ددغه کان د ډبرو له سکرو څخه د هرات ښاروالي او فرقه کار اخلي.

همدا اوس د افغانستان د کانونو د وزارت په پاملرنې سره دسبزک د چوبي مسجد د ډبرو سکرو له کان څخه دیوې خصوصي کمپنۍ په مرسته کار اخېستل کیږي چې قرار داد یې د لسو کالونو لپاره اعتبار لري.



## د ټولګي دننه فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي، یوه ډله دې د هغو څېړنو او مطالعو په هکله خبرې وکړي چې هندي جیولوجیستانو د لومړي ځل لپاره په افغانستان کې د ډبرو سکرو په هکله ترسره کړې دي.
او دویمه ډله دې د ډبرو سکرو د موجوده زېرمو په هکله خبرې وکړي او پایله دې د ډلې استازي خپلو ټولګیوالوته وړاندې کړي.



## پوښتنې

۱. د افغانستان د ډبرو سکرو د تثبیت شوو سیمو نومونه واخلئ.
۲. د اشپشتې د ډبرو سکرو د ځانګړتیاوو په هکله معلومات ورکړئ.
۳. د کرکر د ډبرو سکرو د کان موقعیت له جغرافیایي پلوه څه اهمیت لري؟
۴. په افغانستان کې د ډبرو سکرو هغه تولیدات چې لوړه سلنه لري له کومو سیمو څخه ترلاسه کیږي سم ځواب په نښه کړئ:
الف . کرکر او اشپشته ب. د هرات سبزک ج. د صوف درې کان د. د هرات د کرخ کان



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زموږ په هېواد کې د ډبرو سکرو د را ایستلو په برخه کې د ستونزو په اړه او داچې دغه ستونزې او خنډونه په څه ډول باید له منځه یووړل شي، یوه مقاله ولیکئ او نوروته یې واوروئ.

# ۲، ۵ نفت او ګاز



۲۹- شکل: د جوز جان په ولایت کې د یتیم تاق او جرقدوق د کانونو د ګازي ځاګانو د ازمېښت او چمتو کولو پرانېستنه

له نفتو او ګازو څخه څه کار اخېستل کېږي؟

نفت او ګاز د تو دو خې او انرژۍ د تولید او سون توکي دي. زموږ د هېواد په بیلابیلو سیموکې یې زیرمې شته چې په لاندې توګه تر بحث لاندې نیول کېږي:

## الف) نفت

نفت د سوځېدو وړ مایع ده چې تر ۱۸۰۰ مترو پورې د ځمکې په ژورو برخوکې موندل کېږي، ځینې وختونه د ځمکې لاندې فشار او تو دو خې له امله پورته خواته را ځي او د ځمکې مخ ته را رسیږي. په میلیونونو کاله مخکې د ژوندیو ژویو او عضوي توکو پاتې شونې چې په یوه سیمه کې پراته وو، ورو ورو د کلونو په تېریدو سره تر خاورو او رسوبي پوړونو لاندې راغلي، چې د فشار او تو دو خې له امله یې د وخت په تېریدو سره بڼه بدله شوې او نفت ورڅخه جوړ شوي دي. د نفتو د را ایستلو لپاره ژورې ځاګانی کیندل کېږي او ډیرې پریړې نل لیکي د نفتو ځاګانو ته ورننه باسي، په دې توګه خام نفت پورته خواته را وځي یا د پمپ په واسطه را ایستل کېږي. خام نفت تور رنګ لري، خو وروسته تر چاڼولو څخه یې په چنځای کې رنګ بنفش شي او اسانه سوځي.

زموږ د هېواد په ډیرو سیموکې د نفتو زیرمې شته چې شمال، لویدیځ او جنوب لویدیځ برخې یې نیولي دي او مهم ولایتونه یې تخار، کندز، مزار شریف، جوزجان، فاریاب، بادغیس، هرات او

نوردي. همدارنګه د هلمند په وادي او په پکتيکا کې هم د نفتو د زيرمو اټکل شوی دی.
نفت په ډېرو ځايونو کې کارول کيږي. دکورونو په روښانه کولو، د حمل ونقل په وسايلو، په صنعتي ماشينونو، کيمياوي صنايعو او ګڼ شمېرنورو مرکبونو لکه مصنوعي ربړ جوړولواو نوروکې ورڅخه استفاده کيږي.
د هغو له فرعي مشتقاتو څخه د پلاستيك په جوړولو د عطرونو، رنګونو او ان دا چې د ځينو خوراکي توکو لکه مارګرين غوړيو په جوړولو کې کار ترېنه اخېستل کيږي.

## ب) ګاز

د ګازونو را منځته کيدل هم لکه د نفتو په شان د ژونديو ژويو د پاتې شونو څخه د عضوي موادو د ترسب او د تودوخې او فشار له امله او هغوته د هوا د نه رسيدلو له امله دي چې بڼې يې بدلون موندلی او په ګاز بدل شوي دي.
ګاز د افغانستان يوه ډېره ارزښتمنه سر چينه ده. دهغو لويې زيرمې هم دهېواد دننه د لګښت لپاره او هم بهر ته د صادرولو لپاره لوړ ارزښت لري. په داسې حال کې چې د هېواد په بيلابيلو سيموکې د ګازونو د پيدا کيدو امکانات شته، په اوسني وخت کې يې لويې زيرمې په خواجه ګوګردك، يتيم تاق، خواجه بولان او جرقدوق کې موندل شوي دي او همدا اوس ترګټې اخېستنې لاندې دي چې دلته يې څو حوزې په لنډ ډول د يادولو وړ دي.

### ۱. د خواجه ګوګردک د ګازو کان

دغه زېرمه د شبرغان دښار شمال لويديځ ته د ۲۳ کيلو متروپه واټن پرته ده، د کيندل شوو څاګانو شمېرېې ۵۲ دی. ټوله زيرمه يې ۴۶،۸ ميلياړده مکعب متره ګاز اټکل شوی چې تر اوسه پورې يې ۴۴ ميلياړده مکعب متره را ايستل شوی دی. همدارنګه په دغه سيمه کې ۱۰ ميلياړده مکعب متره تريو (سلفر لرونکی) ګاز هم موندل شوی دی.

### ۲. د يتيم تاق د ګازو کان

دغه زېرمه د شبرغان له ښار څخه ۱۸ کيلو متره لرې ختيځ ته پرته ده. دهغه تثبيت شوې زيرمه ۲۰،۸ ميلياړده مکعب متره ښودل شوې ده.
په ۱۳۴۱هـ ل کال کې يې د برمه کولو په حال کې په څلورمه څاه کې اور ولګيد چې د دريوکلونو سوځېدلو په ترڅ کې يې ميليونونه مکعب متره ګاز وسوځيدل.

## ۳. د جرقدوق دګازو کان

دغه زيرمه د شبرغان له ښار څخه ۱۵ کيلو متره ليرې جنوب لويديځ کې پرته ده، ۳۳ څاګانې يې ۲۲۰۰ متره په منځني ژوروالي کيندل شوي دي، ګاز يې تريو دى، ټوله زېرمه يې ۲۶ ميلیارده مکعب متره ښودل شوې چې تر اوسه پورې يې ۱۵،۳۶۲ ميلیارده مکعب متره را ايستل شوې ده.

## ۴. د خواجه بولان دګازو کان

د شبرغان د ښار په ۳۰ کيلومتره ختيځ کې دى، د برمه کولو چارې يې په ۱۳۴۲هـ کې پيل شوي دي، تر يوګاز لري او زيرمې يې ۲،۵ ميلیارده مکعب متره دي.
په پورتنيو سيموکې يې دګازونو ټولې زيرمې ۱۲۰ ميلیارده مکعب متره تثبيت شوي چې له هغو څخه يې ٤۰ ميلیارده مکعب متره خوږګاز او پاتې نور يې تريو يا سلفر لرونکى ګاز دى. دګازو د صادرو لو لپاره د پخواني شوروي اتحاد تر پولو پورې د ۳۲ انچو په قطر اود ۹۷,۵ کيلو مترو په اوږدوالي يوه نل ليکه جوړه شوې وه. يوه بله نل ليکه د شبرغان له ښار څخه د مزار شريف د سرې او برېښنا تر فابريکې پورې ايستل شوې وه چې ۵۵ کيلومتره اوږ دوالى او ۱۲ انچه قطر يې درلود، دليږ دولو وړتيا يې په يوه کال کې ۵۰۰ ميليونه مکعب متره وه.
مزارشريف ته يې دليږ دولو موخه د مزارشريف دسرې او برېښنا له فابريکې څخه کار اخېستل وه چې په يوه کال کې يې ۱۰۵ زره ټنه يوريا سره توليدوله او همدارنګه د مزارشريف د برېښنا د فابريکې په کار اچول و چې په يوه ساعت کې يې ۳۶ زره کيلو واټه برېښنا توليدوله. داهم بايد وويل شي چې په ۱۳۵٤ هـ ل. کال په افغانستان کې د درې ميلیاردو مکعب مترو شاوخوا ګاز توليد شوى و چې له هغه څخه ۲۸۵۰ ميليونه مکعب متره يې بهر ته صادر شوى او ۱۵۰ ميليون مکعب متره يې د هېواد د ننه لګول شوى و. په ځينو کلونو کې يې د ګاز له صادرولو څخه د هېواد په سلوکې ٤۰ د صادراتو ټول ارزښت تر لاسه کيده چې د افغانستان دتادياتو د بيلانس په برخه کې يې پوره اهميت درلود، همدارنګه په پام کې وه چې د سلفرو د جلاکولو په پروژه کې د جرقدوق په سيمه کې د سلفر لرونکي ګاز له ۲۶ ميلیارده مکعب مترو څخه هم استفاده وشي. له طبيعي ګاز څخه په ډيرو ځايونو کې کار اخېستل کيږي، له دې پرته چې په پخلي او د کورونو په تودولو کې کار ورکوي، د يوشمېر کيميايي مرکبونو په جوړولو کې هم ګټور دى او د برېښنا د انرژي د توليد لپاره هم يوه ډيره ښه سرچينه ده.

(٤) جدول: په بیلابیلو کلونو کې د نفتو، گاز او د ډبرو سکرو د ایستلو اندازې

| کلونه | نفت(په ټن) | گاز(په مکعب مترو) | د ډبرو سکاره(په ټنو) |
|---|---|---|---|
| ۱۳۸۲ | ۸۵۰ | ۲۴۲۶۲۰ | ۳۵۱۰۰ |
| ۱۳۸۳ | ۱۴۶۹۰ | ۱۱۹۱۲۱ | ۳۳۷۳۰ |
| ۱۳۸۴ | ــــ | ۱۷۲۳۳۷ | ۳۳۱۱۰ |
| ۱۳۸۵ | ــــ | ۱۷۱۹۲۵ | ۳۴۹۲۰ |
| ۱۳۸۶ | ــــ | ۱۶۱۴۴۰ | ۲۴۲۷۰۰ |

## دټولگي دننه فعالیت

زده کوونکي دې دوه ډلې شي، لومړۍ ډله دې د افغانستان د نفتو د زېرمو او دویمه ډله دې د طبیعي گاز په هکله خبرې وکړي او د خپلو خبرو پایله دې نورو ته ووایي.

## پوښتنې

۱. نفت څه دي؟
۲. دگاز د پیداکیدو دسرچینو په هکله معلومات ورکړئ.
۳. نفت چیرته په کاریږي؟
٤. د افغانستان دگاز د مهمو حوزو نوم واخلئ.
٥. د نفتو زېرمې د افغانستان په کومو برخوکې تثبیت شوي دي؟
٦. په افغانستان کې د طبیعي گاز عمومي زېرمې په څومره اندازه تثبیت شوي دي؟
۷. سم ځواب په نښه کړئ:
الف) ۱۳۵ میلیارده مکعب متره
ب) ۱۲۰ میلیارده مکعب متره
ج) ۱۱۰ میلیارده مکعب متره
د) ۱۸۰ میلیارده مکعب متره.

## له ټولگي څخه بهر فعالیت

د افغانستان د کاني سرچینو د نقشې له مخې یوه نقشه رسم کړئ او په هغې کې د گاز او نفتو سیمې په ځانگړو نښو سره وښیئ او په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولگیوالوته وړاندې کړئ.

## الف) د هېواد نفت لرونکې حوزې



۳۰- شکل: د جوزجان ولایت د نفت اوګاز دچاڼولو د فابریکې یو انځور

دنفتو زیرمې زمورږ د هیوا په کومو برخوکې شته دي؟

په افغانستان کې د نفتو د زیر مو د تثبیت په هکله څېړنې په کمه اندازه په ۱۳۱٤ هـ ل. د افغاني او بهرنیو جیولوجست له خوا د هېواد په بیلابیلو سیمو لکه د هېواد په شمال، لوېدیځ، جنوب لوېدیځ او جنوبي کې پیل شوې. د لومړي ځل لپاره په ۱۳۱٥ هـ ل. کال یوې امریکایي کمپنۍ د افغانستان په شمال کې نفت لرونکې شیل طبقې ( د ختو او شګو له کیناستو څخه جوړېږي) وموندلې او وروسته بیا د هغو لازیاتې زیرمې په پکتیکا او د هلمند په وادي او د افغانستان په سهیل (جنوب) کې هم وموندل شوې. په ۱۳۳۳هـ ل. کال کې یوې سویډني کمپنۍ د نفتو د پلټنې چارې په منظمه توګه د سرپل په ولایت کې پیل او دپام وړ بریالیتوبونه یې ترلاسه کړل، خوله ۱۳۳۸ هـ ل. کال څخه وروسته د هغه موافقه لیک له مخې چې په همدې اړه له دې څخه دوه کاله مخکې په مسکوکې لاسلیک شوی و، د پخواني شوروي اتحاد د متخصصینو په مرسته د مزارشریف او اندخوی ترمنځ د افغانستان په شمال کې په ٤٦۰۰ مربع میله ساحه کې د نفتو د پلټنې چارې پیل شوې. ددغو څېړنو پایلو وښوده چې د هېواد په شمال کې د تخار له ولایت څخه د ایران ترپولو پورې د نفتو د زیرمو د شتوالي پراخه امکانات شته او د هغه په دوام د هېواد د جنوب په پکتیکا او ترلویدیځ پورې یې دقلعه نو. هرات، شبرغان،میمنې، کندز، تالقان، مزارشریف او نورو سیمو کې د نفتو زیرمې ترسترګو شوې. دهلمند په وادي، پکتیکا او د افغانستان په جنوبي سیموکې هم د نفتو زیرمې اټکل شوي، خو د پوره پانګې او د تجربه لرونکو فني پرسونلو د نشتوالي له امله د هغو منظم را ایستل تر اوسه پورې نه دي تر سره شوي. د نفتو یوازینۍ تثبیت شوې زیرمه په جوزجان کې ده په دې لړ کې د انګوت زیرمه دیادولو وړ ده.

دلته د انګوټ په ګډون د نفتو يو څو کانونه در پېژندل کيږي:

**۱. د انګوټ د نفتو زيرمه**

د سرپل دښار څخه پنځه کيلومتره ختيځ کې دی چې د نفتو طبقې يې له ۱۱۰۰ څخه تر ۱۲۰۰ متروپورې دي. جيولوژيکي زيرمې يې ۷،۱ ميليونه ټنه اود ايستل کېدو وړ زير مي يې ۲،۰۶ ميليونه ټنه ښودل شوي دي.

**۲. د آق دريا دنفتو زيرمه**: د سرپل څخه لس کيلومتره ختيځ کې ده، ټولې زيرمې يې ۱۲ ميلونه ټنه دي. ثابتې اودګتې اخېستو وړ زيرمې يې له څلور ميليونو ټنو څخه زياتې اټکل شوي دي.

**۳. د قشقري دنفتو زيرمه**: د سرپل جنوب ختيځ ته په ۱۲ کيلومتره واټن کې پروت کان دی جيولوژيکي زير مې يې ۱۹،۶ ميليونه ټنه ، د ايستلو وړ زير مې يې ۶،۳۸۱ ميليونه ټنه نفت ښودل شوي دي.

**۴. د زمرد ساى د نفتوزيرمه**: د شبرغان دښار د جنوب لويديځ په ۶۰ کيلو مترۍ کې پروت دی. زير مې يې ۹،۱۹ ميليونه ټنه اود ايستل کېدو وړ زير مې يې ۳،٤ ميليونه ټنه اومه نفت دي.

په ۱۳۵۱هـ.ل. کال کې وپتېل شوه چې په دغه برخه کې يو کوچنی د نفتو چڼځاى جوړشي،خو کله چې د آق دريا د زيرمو توليدي ظرفيت نورهم زيات شو، ددغه چڼځاى ظرفيت هم ۲۰۰ زرو ټنو ته لوړشو. البته د هغه د ودانى د کارله بشپړېدو وروسته به په راتلونکې کې د نفتو توليدي ظرفيت نور لوړشي چې پرته له شکه به د هېواد دننه د يو شمېر اړتياوو د پوره کېدو سربېره به د هېواد د تادياتو په بيلانس کې هم ارزښت ولري.

په اوسني وخت کې د افغانستان د نفتو اړتياوې له بهر څخه د هغو په واردولو سره بشپړېږي، په همدې ترڅ کې نفتوته د هېواد اړتيا ورځ په ورځ زياتيږي، او د هغو نړيوالې بيې هم مخ په زياتيدو دي.

## د ټولګي دننه فعاليت

زده کوونکي دې په دوه کسيزو ډلو وويشل شي، د افغانستان د کاني سرچينو د نقشې او د لوست د متن څخه په کار اخېستو دې لاندينی فعاليت تر سره کړي:

۱. هغه سيمې چې هلته دنفتو زير مې شته په ترتيب سره دې له شمال ختيځ څخه ترجنوب لويديځ پورې لېست کړي.

۲. ودې وايي چې کومو کمپنيو، په کومو برخوکې، څه وخت د نفتو د زيرمو د تثبيت لپاره څېړنې تر سره کړي؟

## پوښتنې

۱. ولې تر اوسه پورې د افغانستان نفت په پراخه او منظمه توګه نه دي را ايستل شوي؟ توضيح يې کړئ.

۲. د نفتو زير مې د افغانستان په کومو سيموکې دي، نوم يې واخلئ.

۳. د نفتو يوازينی ثبت شوې زيرمه څه نوميږي او چيرته ده؟

## له ټولګي څخه بهر فعاليت

ګرانو زده کوونکو يوه ورځپاڼه، مجله، کتاب يا انټرنتي پاڼه چې د افغانستان دنفتو د زير مو د پلټنې يا سوداګرۍ په هکله معلومات ولري، ولولئ او د هغې اخځ په راتلونکي لوست کې خپل ښاغلي ښوونکي ته ښکاره کړئ.

## اولسم لوست
## ۶،۲ فلزات



۳۱- شکل: په یوه ډبره کې د مسو آثار چې د لوګر له عینک څخه ترلاسه شوې ده.

د فلزاتو زیر مې د افغانستان په کومو سیموکې دي؟

انسانانو له ډېر پخوا څخه فلزات پیژندل او هغه یې کارول ، خوپخوا یې کارول محدود و. دهغو نښو له مخې چې په دې برخوکې شته، داسې څرګندیږي چې هغه لومړنی فلز چې انسانانو وپیژاند، مس او بیا وروسته اوسپنه وه. زموږ په هېوادکې د یو شمېر فلزاتو لکه مسو، اوسپنې سربو، کرومو، جستو اوګرانبیه فلزاتو لکه د سرو زرو او سپینو زرو زیر مې او سر چینې شته چې د هریوه په هکله لنډ معلومات ورکول کیږي:

- **اوسپنه**: د اوسپنې زیرمې د افغانستان په لاندېنیو برخو او سیموکې شته دي:

- د کندهار په خاکریز کې چې د زیرمواندازه یې ۸،۲۳ میلیونه ټنه ښودل شوی ده او د حاجیګګ کان.

- دهرات دغور یانو کان چې په ۱۳۸۸هـ ل کال کې یې له یوې ایراني کمپنی سره د پلټنې تړون شوی و.

- د بدخشان د سیاه درې کان چې اټکلي زیرمه یې له ۴۰ تر ۴۵ میلیونه ټنه ده.

- د پغمان د ولسوالی د اوسپنې کان چې زیر مه یې ۱،۳۸ میلیون ټنو ته رسیږي.

- دجبل السراج د اوسپنې کان چې د زیر مو اندازه یې اته میلیونو ټنو ته رسیږي او د اوسپنې اندازه یې په سلوکې ۴۵ ښودل شوې ده.

- **د حاجي گک د اوسپنې کان**: د بامیان د جنوب ختیځ په ٤٥ کیلو متره واټن کې پروت دی چې د خپل کیفیت اوزیرمو له پلوه د سیمې یو ډېر لوی او مهم کان شمېرل کیږي. د اوسپنې زیر مې یې ۱،۸ میلیارده ټنه ښودل شوې دي او د اوسپنې سلنه یې ٦۳،٥ ښودل شوې ده. د کانونو د وزارت نوې شمېرې د دغه کان ثبت شوې زیرمې ۱۱۰ میلیونه ټنه او اټکل شوې زیرمې یې ۲۰۷۰ میلیونه ټنه ښودلې دي. د حاجي گک د کان له زیرمو څخه د گټې اخېستنې امکان شته، خو د نوموړو کانونو را ایستل زیاتې پانگې ته اړتیا لري. په پام کې وه چې په ۱۳۸۸ هـ ل. کال کې یې گټه اخېستنه خصوصي سکتورته وسپارل شي چې د راتلونکو کلونو په ترڅ کې به یې چارې بشپړې او په کال کې به یومیلیون ټنه پولاد ورڅخه تولید او یو شمېر هېوادو الوته به د کار زمینه برابره شي.

- **مس**: د افغانستان په لسو ولایتونو کې د مسو د کانونو ۱۲ زیر مې شته چې له پروان څخه تر فراه او کندهار پورې یې پراخه ساحه نیولې ده. په دې کې د کجکي ترمنځ سیمې ډیرې مهمې دي.

- د مسو د طبقو کانونه په تغر، خورد کابل او ان د چهلستون په غرونو کې تر سترگو کیږي.
- د کابل په دربندکې (د عینک له کان څخه ۸ - ۹ کیلو متره لرې په خطي بڼه د مسو کان پروت دی، د مسو اندازه یې په سلوکې ۰،٥۸ – ۱،٥٥ پورې ده. د زابل ولایت د مسوکان د کندلان په سیمه کې ثبت شوی دی چې د مسو اندازه یې په سلوکې ۰،٦۲ څخه تر ۱،۲ پورې ده، ټوله زیرمه یې له ٥ تر ۸ میلیونوټنو پورې اټکل شوې ده.

- **د لوگر د عینک د مسو کان**: د کابل ښار په جنوب ختیځ کې دی، اټکلي زیرمې یې څلور میلیونه ټنه او په دغه کان کې د مسو اندازه په سلوکې له ۱،۲ تر ۱،٥ پورې ښودل شوې ده. په عینک کان کې د مسو اټکل شوې زیر مې له ٦ میلیونو ټنو څخه زیاتې ښودل شوي دي. دکانونو د وزارت نوو شمېرو دهغو تثبیت شوې زیر مې له ۱۱ تر ۱۳ میلیونو ټنو مسو پورې ښودلې دي د داوطلبۍ له چارو وروسته یې په ۱۳۸۷هـ ل. کال کې له یوې چینایي کمپنۍ سره قرارداد لاسلیک ډېر ژر به په گټه اخېستنه پیل وکړي چې هر کال به تقریباً ۲۰۰ زره ټنه خالص مس تولید کړي.

- د مسو دکان زیرمې دهرات په شیدا، بادغیس، فراه، هلمند، کابل، غزني، بامیانو، غوربند، اندراب بغلان او سرپل کې هم د ارزښت وړ دي.

- **سره زر**: په افغانستان کې سره زر د هندوکش دوو خواووته په بیلابیلو سیموکې شته چې یوه پراخه ساحه یې د فیض آباد له شمال څخه په جنوب لویدیځ کې تر کندهار پورې نیولې ده. مهم کانونه یې د بدخشان په یفتل او د غزني په مقر کې شته. د یفتل په سیمه کې د سرو زرو او کوارتز د ډبرو څلور رګونه دي چې په هر ټن کاني توکوکې یې له یو څخه تر ۸۵ ګرامو پورې سره زرشته دي.

- د سروزرو نورې زیر مې د قلات په زرکشانو کې شته چې د سرو زرو اندازه یې په هر ټن کاني توکي کې له ۰,۵ څخه تر ۱۱ ګرامو پورې ده.

همدارنګه د کوکچې د سیند او د هغه د مرستیالانو په تګلوري کې په یوه پراخه ساحه کې سره زر شته چې د سرو زرو اندازه یې د شګې په هر مکعب متر کې په منځنۍ توګه تر ۳۹٤ میلي ګرامو پورې محاسبه شوې ده.

- **سپین زر**: د سپینو زرو زیر مې د پنجشیر (له عمرز څخه تر خاواک پورې)، دهرات سیم کوه او د بي بي ګوهر په سیمه او د کندهار په خاکریز کې شته چې پخوا به په نافني توګه ایستل کیدې، خو اوس ور څخه کار نه اخېستل کیږي.

- **د سربو او جستوکانونه**: زموږ په هېواد افغانستان کې د سربو او جستو کانونه هم شته چې په هغوکې د کندهار د بي بي ګوهر د سربو او جستو د کان نوم اخېستلای شو چې زیر مې یې ۲۱۱۰۰ ټنه جست او ۵۵۰۰ ټنه سرب ښودل شوي دي چې د هرات د چشت په سیمه او د هزاره جاتو د تولك او د غوربند د فرنجل سیمې کې هم شته دي.

- **د کروم د ډبرو کانونه**: د کروم د ډبرو دشتوالي نښې د خوست، میدان وردګو، د لوګر د محمد اغې او کلنګار او کندهار په سیموکې دیا دونې وړدي. د کانونو د وزارت نوې شمېرې د خوست د کرومو د ډبرو د ایستلو منځنۍ کلنۍ اندازه ۷۳۰۰۰ ټنه ښودلې ده چې په ۱۳۸٦ هـ ل. کال کې یې له یوې کمپنۍ سره قرار داد شوی و خو اوس د امنیتي حالت د خرابوالي له امله نه ایستل کیږي.

د میدان وردګ ولایت دکرومایت د کان منځنۍ کلنۍ اندازه له ٤۰۰۰۰ ټنو څخه زیاته ښودل شوې ده.





۳۲- شکل

## دټولګي دننه فعالیت

زده کوونکي دې په پنځو ډلو وویشل شي، د لوست د متن او دافغانستان دکانونو د نقشې په لوستلو دې لاندې فعالیت تر سره کړي او دخپل کار پایله دې په ټولګي کې ووایي:

لومړۍ ډله : د اوسپنې دکانونو د سیمو نومونه واخلئ او د نقشې پر مخ یې وښیئ.

دویمه ډله : د سروزرو د کانونو د سیمو نومونه واخلئ او دنقشې پر مخ یې وښیئ.

دریمه ډله : د سپنو زرو د کانونو د سیمو نومونه واخلئ او دنقشې پر مخ یې وښیئ.

څلورمه ډله : د مسو دکانونو د سیمو نومونه واخلئ او دنقشې پر مخ یې وښیئ.

پنځمه ډله : د سربو د کانونو د سیمو نومونه واخلئ او دنقشې پر مخ یې وښیئ.

## پوښتنې

۱- زموږ په هېواد کې څو ډوله فلزات شته؟ نومونه یې واخلئ.

۲- د اوسپنې کانونه د افغانستان په کومو سیموکې دي او د هغو ډېر مهم کان کوم یودی ؟

۳- د لوګر عینک د مسو دکان په هکله معلومات ورکړئ.

٤- د سربو او جستو زېرمې زموږ دهېواد په کومو سیموکې دي؟ نوم یې واخلئ.

٥- زموږ په هېواد کې د سپینو زرو زېرمې په کومو برخوکې تثبیت شوي دي؟ نوم یې واخلئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

د فلزاتو د لوست متن او د کانونو نقشه ولولئ او په راتلونکې ساعت کې یې د هغو د مهمو ټکو په هکله معلومات ورکړئ.

## دفلزاتو دکانونو اقتصادي اهمیت



۳۳- شکل: د عینك د میسو دکان د پروژې پرانیستل

له فلزاتو څخه څه کار اخېستل کیږي؟

لکه څرنګه موچې په تېر لوست کې ولوستل او جیولوژیکي څېړنو ښودلې ده، زموږ دهېواد په ډېرو برخو کې، د فلزاتو کانونه شته. دغه کانونه دهېواد په اقصاد کې د اهمیت وړدي. افغانستان د فلزی زیرمو دلرلو له مخې یو بډای هېواد ګڼل کیږي. د هېواد فلزي زیرمې د پانګې اچونې، د تخنیکي وسایلو، د فني پرسونل او هېواد دننه او بهر د خرڅلاو د بازار په چمتو کیدو سره په پراخه اندازه را ایستل کیدای شي.

فلزات ځانګړی اقتصادي ارزښت لري. د کرنې، سوداګرۍ، تخنیك او د ژوند دنورو چارو په برخوکې د اقتصادي فعالیتونو پر مختګونه، د فلزي صنایعو له پر مختیا سره اړه لري. فلزي زیرمې دیوه هېواد دصنعتي کیدو، د خلکو د ژوند دکچې دلوړیدو او داقتصادي پر مختیا لپاره یو مهم ضرورت دی. ښکاره خبره ده چې دیوه هېواد د صنایعو بنسټ د فلزاتو په زیرمو او د اوسپنې ویلي کولو پورې اړه لري. هغه هېوادونه چې د اوسپنې د ویلي کولو فابریکې نه لري، باید د ماشینونو د پیرودلو لپاره زیاتې پیسې ولګوي، نوله دې امله د بټیو او د اوسپنې دویلې کولو د فابریکو جوړول دیوه هېواد د اقتصاد مهمه برخه جوړوي. هېوادونه باید دفلزي صنایعو د رامنځته کولو لپاره هلې ځلې وکړي.

دافغانستان په شان ديوه هېواد لپاره د فابريکو جوړول چې پوره اندازه خام توکي لري، يو اقتصادي او مهم کار او د هېواد داقتصادي بنسټ په پياوړي کولو کې ډېرګټور دي.

د فلزاتو ځانګړ تياوې له اقتصادي پلوه ارزښت لري چې په بيلابيلو برخوکې ورڅخه کار اخيستل کيدای شي: ځينې فلزات د زنګ ضد ځانګړتيا ولري لکه قلعي، سرب او نکل. له سرو زرو څخه د ګاڼو او پولي واحد د ملاتړ په توګه په بانکونو کې تري کار اخېستل کيږي. له سپينو زرو څخه په نقره يې مسکوکاتو او ګاڼوکې کار اخېستل کيږي. اوسپنه د تخنيکي وسايلو د جوړولو او نور فلزات لکه مس، سپين زر او المونيم چې د برېښنا او تودوخې دليږدولو وړتيالري، ځينې نورله يو شمېر نورو فلزاتو سره د ترکيب کيدو ځانګړ تيا لري، د بيلګې په توګه د مسو او جستو له ګډولو څخه برونز تر لاسه کوي او دسماوارونو، چلمچي ګانو، د دروازو په دستګيرونو او د نورو برونزي وسايلو په جوړولو کې ور څخه کار اخلي، نو ځکه فلزات ځانګړې اهميت لري او د دروازو، کړکيو، کټونو، مېزونو، څوکيو، د ماشينونو په پرزو، د فابريکو په جوړولو او دلوښو په جوړولو کې ورڅخه کار اخېستل کيږي.

## د ټولګي دننه فعاليت

زده کوونکي دې څو ډلې شي: هره ډله دې دفلزاتو په اقتصادي ارزښت خبرې وکړي او د خپلو خبرو پايلې دې نوروته ووايي.

## پوښتنې

١- ولې فلزات زيات اهميت لري؟

٢- سره زر د نورو فلزاتو په پرتله کومه ښيګڼه لري؟

٣- له فلزاتو څخه دځه ډول وسايلو په جوړولو کې کار اخېستل کيږي؟

## له ټولګي څخه بهر فعاليت

د لوست دمتن په لوستلو سره دفلزاتو د اقتصادي اهميت په هکله فکر وکړئ او په راتلونکي لوست کې دهغو په اړه خپلو ټولګيوالوته معلومات ورکړئ.

## ۷،۲ د ودانۍ د ډبرو کانونه





د کابل په ښارکې یو کارکوونکی د مرمرینو ډبرو د توږلو په حال کې ۳٤- شکل: د گرانیت د ډبرې یو تصویر

د ودانیو د ډبرو کانونه د هېواد په کومه سیمه کې دي؟

افغانستان یو غرنی هېواد دی، د تعمیراتي ډبرو د منابعو له پلوه ډېر غني دی، چې له ډېرې پخوا زمانې راهسې په ودانیو کې کارول کیږي، په لاندې ډوله دي:

**الف: د گرانیت** Granite (**خارا**) **ډبرې**

دا ډول ډبرې دځمکې په ژورو برخوکې له اورغور ځوونکو توکو څخه منځته راغلی دي. دا ډبرې له درو مختلفو منرالونو جوړې شویدي فلد سپار،مایکا او کوارتز، چې ښې نمونې یې دده دانا تر څنگ غرونو او نورو غرنیو سیمو ډبرو لکه سالنگونو کې تر لاسه کیږي. دا ډبرې د تراکم او سختوالي له امله د ودانیو په زینو، تهدابونو یا بنسټونو او د سړکونو په فرش کې کارول کیږی.

**ب : بزلت** Basalt

دا ډبرې د ځمکې مخ ته داور غور ځونکود لا وا موادو پاتې شوې ډبرې دي، چې د اورغورځوونکو فعالیتونو یعنې د آتشفشان غرونو په لمنو کې شتون لري. د افغانستان په زیاترو غرنیو سیمو کې پریمانه پیداکیږي. ددې ډول ډبرو مهم منرالونه عبارت دي له: پیروکسین، فلد سپار، الیوین او ځینې فلزي منرالونه دي. دا ډبرې په ځانگړې آب او هوا کې پر لویو او وړو ټوټو ماتیږي او دودانیو په تهدابونو کې کارول کیږي.

**ج: متحوله ډبرې**: چې په دریابونو کې له رسوب او آهکي ډبرو څخه رامنځ ته کیږي. د وخت په تېریدو فشار او تودو خې له امله په مرمرو بدلیږي، ددې ډبرو ذخیرې زموږ په هېواد کې ډېرې دي، دشگو او رسوبي ډبرې د وخت په تېریدو سره په کلکو تخته یې ډبرو بدلیږي. چې هغه هم په زیاته کچه کارول کیږي.

**د: د رخام او مرمرو ډبرې**:Marble

دا هغه تغیر منونکې آهکي ډبرې دي چې په بېلا بېلو اوښکلو رنګونو په هېواد کې پیداکیږي، خالص مرمر سپین رنګ لري، مرمر ډبرې اهکې ډبرې دي چې دفشار او تودو خې له امله یې بڼه بدلون کوي، دېرې کیدو او تخنیکي پالش په واسطه ځلا او ښکلا پیداکوي. له دې امله دا ډبرې دو دانیو په ښکلا، دچای خوړلو مېزونو، لوښو، د زیارتونو په لوحو او آن د مجسمو په جوړولو کې ورڅخه ګټه اخېستل کیږي.

د مرمر ډبرې په افغانستان کې ډېرې پیداکیږي. له دې جملې کولای شو د ننګرهار د خوږیاڼو او د اچین سیمه، د هرات ولایت د چشت په سیمه کې او د میدان وردګ د کوټه عشرو په سیمه کې د مرمر ډبرې پیداکیږي د کابل په ولایت کې کولاي شو چه د بادام باغ، ریشخور، قرغې او تره خیلو څخه یادونه وکړو.

د ودانیو د ډبرو تر څنګ په هېواد کې دو دانیو نور توکي هم پیدا کیږی لکه چونه، ګچ چې په زیاته کچه دو دانیو په جوړولو کې کارول کیږي.

آهکي مواد له تخنیکي عملیې وروسته په سمنتو بدلیږي، د بیلګې په ډول، غوري سمنت، جبل السراج د سمنتو د تولیدونکو له ارزښتناکو او مهمو مرکزونو څخه دي، چې همدا اوس یې د تولید کچه په بدلون کې ده.

**په ټولګي کې فعالیت**

زده کوونکي دې پر څلورو ډلو وویشل شي، لومړۍ ډله دې دلوست له متن څخه دګټې اخېستنې په هکله معلومات وړاندې کړي.

دویمه ډله دې د لوست له متن څخه په ګټې اخېستنې سره د هغو سیمو چې هلته د مرمر ډبرې ډېرې پیداکیږي نومونه واخلي.

دریمه ډله دې د لوست له متن څخه په ګټې اخېستنې سره د بازالت ډبرو په هکله او له هغو څخه د ګټې اخېستنې په باب معلومات وړاندې کړي.

څلورمه ډله دې له شګو څخه د جوړوشوو ډبرو د ځانګړتیاوو او د رسوبي ډبرو او تغییر منونکو ډبرو په باب معلومات وړاندې کړي.

١- د ګرانیت له ډبرو څخه په کومه برخه کې ګټه اخېستل کیږي؟

٢- درخام او مرمر ډبرې د نورو ډبرو په پرتله څه توپیر لري، لنډ یې تشریح کړئ.

٣- د کابل په کومه سیمه کې د مرمر ډبرې پیداکیږي؟

٤- د سمنتو په جوړولو کې له څه ډول خامو موادو څخه ګټه اخېستل کیږي، د هغې مهمې فابریکې په کومو ځایونو کې پرتې دي؟

**له ټولګي څخه بهر فعالیت**

د ودانیو د یو ډول کاني ډبرو نوم واخلئ، د هغې د ځانګړتیا وو او اهمیت پر باب پنځه کرښې معلومات برابر کړئ.په راتلونکي لوست کې یې وړاندې کړئ.

## ۸، ۲ قیمتي ډبرې




۳۵- شکل

د افغانستان دګرانبیه تیږو مهمې سیمې

۸، ۲ ګرانبیه ډبرې څه ډول ډبرې دي او دافغانستان په کومو سیموکې موندل کیږي؟

قیمتي تیږې الماس، لاجورد لعل(لال) یاقوت او زمرد دي چې دهېواد په بیلابیلو سیموکې شته له دې جملې څخه الماس، یاقوت، زمرد او لعل قیمتي تیږې او لاجورد امیتیست او نورې لږ قیمتي دي چې دلته یې په ځینو خبرې کوو:

### الف) الماس

الماس د نورو تیږو په پرتله ډیر کلکوالی، ټینګوالی او روڼ رنګ لري. له همدې امله دی چې دځینو شیانو په پرې کولو او ترا شلوکې ورڅخه کار اخېستل کیږي. سره له دې چې تر اوسه پورې په افغانستان کې الماس نه دی موندل شوی، خو دجیولوژۍ پوهان وايي چې د بدخشان، په مرکزي سیمو، لوګر او غوربند کې د الماسو د پیداکیدو امکان شته دی.

## ب) لاجورد


۳۶- شکل

(لاجوردو) د تیږې یوانځور

لړه ګرانبیه تیږه ده له ډیر پخوا یعنې له شلور زره یا پنځه زره کاله پخوا څخه یې دبدخشان د جرم د ولسوالی د حضرت سعید په کلي کې ایستل پیل شوی وو، خو په اوسنی بڼه یې تولید له ۱۹۳٤ م. کال څخه را پیل شوی دی.

د افغانستان په شمال ختیځ کې د لاجوردو د ۲۷ سیمو اوزیرمو څیړنه تر سره شوې ده چې په دې کې د بدخشان ولایت د جرم د ولسوالۍ اړوند د سرسنګ کان د لوړ اهمیت لرونکی او ترګټې اخیستنې لاندې دی. په ټولو زیرمو کې یې د لاجوردو اندازه ۱۲۹۰ ټنه ده. د سرسنګ په سیمه کې په یواز یتوب سره ۱٤۱ ټنه لومړۍ درجه لاجورد او ٦۵ ټنه دویمه درجه تثبیت شوي دي. هغه لاجورد چې دلندن په موزیم کې ایښودل شوي دي، د افغانستان لاجورد دي چې ۳۸۰۰ کاله مخکې ایستل شوي دي. په افغانستان کې هر کال ۵ نه تر ۱۰ ټنو پورې لاجورد ایستل کیږي چې ډیره برخه یې بیلابیلو هېوادونو ته صادریږي او له ډیرې لږې برخې څخه یې د لاسي صنایعو په مرکزونو کې کار اخیستل کیږي.

د افغانستان لاجورد د جنیست له پلوه، د رنګونو د ډولونو، نرم والې او روښوالي له مخې د نورو هېوادونو له لاجوردو څخه امتیاز او لوړتیا لري چې په توره ابي، روښانه ابي، ډېر روښانه ابي او شنه روښانه رنګونو باندې موندل کیږي. لاجورد د تیږو پیژندنې او سوداګریز بازار له پلوه پنځه ډوله دي: لومړۍ، دویمه، دریمه، څلورمه، او پنځمه درجه لاجورد.

لاجورد تخنیکي استعمال نه لري، یوازې په ګاڼو او زینتي وسایلو کې کارول کیږي. د لاجوردو ایستنه په پخوانیو کلونو کې په پرله پسي توګه پر مخ روانه وه، خو د امنیتي حالاتو د خرابۍ له کبله یې ایستل ځنډېدلي دي، خو د نامسؤولو خلکو له خوا یې په غیر مجاز او ناقانونه بڼه ایستل

روان دي چې د کانونو د ويجاړيدو او دولت ته دنه جبران کېدونکي زيان لامل شوي چې ددغو کانونو بيارغاونې ته به په راتلونکي کې ډېرې پانګې ته اړتيا وي.

## ج) لعل

د لعل کانونه، د بدخشان په اشکاشم او د سروبي په جګدلک کې دي او د پيازي لعل کانونه د کندهار په خاکريز کې شته. لعل لوړه درجه کلکوالی لري او سور، بنفش ډوله، شين ته ورته آبي، ژېړ يا تور رنګونه لري.



۳۷- شکل

د لعل د تيږې يو انځور

## د) ياقوت

د مهمو ځانګړتياوو لرونکی دی. د لومړۍ ډلې له جواهراتو څخه شمېرل کيږي، د پاڼې کېدلو وړتيا نه لري. درجه يې سخته ده. د روښانه سور اناري رنګ لرونکی او ځلا يې ښيښې ته ورته ده، ياقوت د سروبي ولسوالی د جګدلګ په سيمه کې په سور او ګلابي رنګونو پيدا کيږي.



۳۸- شکل

د کان په تيږه کې د سرو ياقوتو يو انځور

## هـ) زمرد

د زمردو کانونه د پنجشیر د خنج، بزمال او مکني په سیمو او دکونړ په باډیل دره کې شته دي. د پنجشیر زمرد زمردي شین رنګ او ځینې وخت ابي ډوله رګونه لري. زیرمې یې ٤٤٠ کیلو ګرامه اټکل شوي دي تر اوسه پورې په افغانستان کې د ګرانبیه تیږو زیرمې په فني او عصري بڼه تر استفادې لاندې نه دي راغلي.



۳۹- شکل

په کاني تیږو کې د زمردو یوانځور

### دټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو وویشل شي، دلوست د متن په لوستلو سره دې دلاجوردو او نورو قیمتي ډبرو زیرمې لرونکی سیمې د افغانستان د کانونو په نقشه کې په نښه کړي.

### پوښتنې

۱- ګرانبیه ډبرې کومو ډبرو ته ویل کیږي؟
۲- دجیولوژي پوهانو په عقیده د الماسو دپیداکیدو سیمې په هېواد کې چیرې اټکل شوي دي؟
۳- لال د افغانستان په کومو سیموکې په کومو رنګونو سره موندل کیږي.
٤- ډیر ښکلي یاقوت د افغانستان په کومو سیموکې موندل کیږي او کوم رنګ یې ډیر نوم لري.
٥- زمرد د افغانستان په کومو سیموکې شته، نوم یې واخلئ.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت:

یوه قیمتي تیږه چې په ګاڼو کې ورڅخه کار اخیستل کیږي، غوره کړئ د هغې د اهمیت، ارزښت او جنسیت په هکله په راتلونکې درسي ساعت کې خپلو ټولګیو الوته معلومات ورکړئ.

## يوويشتم لوست

# ۸،۲ د کانونو او انرژي د حالت څېړنه



۴۰- شکل

د مزار شريف د نفتو او ګازو د تصدۍ انځور

په هېواد کې د انرژۍ او کانونو صنعت څنګه دی؟

لکه څرنګه مو چې ولوستل د انرژۍ مهمې سرچينې د ډبروسکاره، نفت، ګاز، اوبه، باد، لمر او نور دي. چې دلته دهرې يوې حالت څېړو:

**دډبرو سکاره**: زموږ دهېواد د ډبروسکاره د دره صوف، اشپشتې، کرکر او دهرات د سبزک له مسجد چوبي کانونو څخه تر لاسه کيږي.

د ډبرو سکرو لويو زيرمو د هېواد په شمال او لويديځ کې يوه پراخه ساحه نيولې ده چې له هرات څخه يې تر تخار پورې پراخوالی لري او د ډبرو سکرو ډيره برخه د اشپشتې او کرکر له کان څخه رااېستل کيږي.

**نفت**: د نفتو جيولوژيکي څېړنو ښودلې ده چې د نفتو د زيرمو د شتوالي پراخه امکانات دهېواد په شمال کې له تخار څخه دايران تر پولو پورې او دهغو په دوام په جنوب او لويديځ کې تر پکتيکا پورې پراخوالی لري. د نفتو يوازينۍ ثبت شوې زيرمه په جوزجان کې ده چې په هغې کې د انګوت، اق دريا، قشقري او زمردساي کانونه د يادولو وړ دي.

**ګاز** : د ګازونو د زيرمو د شتوالي امکانات د هېواد په بيلابيلو سيمو کې شته. په اوسني وخت کې د هغو يوځه لويې زيرمې د خواجه ګوګردک، يتيم تاق، خواجه بولان او دجرقدوق په سيمو کې د جوزجان په ولايت کې موندل شوي دي چې پخوايې را ايستل پيل شوي وو. دهغو ډيره برخه دخواجه ګوګردک او جرقدوق له سيمو څخه را ايستل کيده او پخواني شوروي اتحادته صادريدل. نورپاتې ګاز د مزارشريف د سرې او برېښنا په فابريکې کې اود برېښنا د توليد لپاره د څلو يښتو کلونو په موده کې کارول شوي دي چې اوس ډيره لږه استفاده ور څخه کيږې. د کانونو د وزارت پلان دا ښکاره کوي چې د هېواد د نفتو يو کان اودګازونو يوکان خصوصي سکتور ته ورکړل شوى اود ۳-٤ کلونو په ترڅ کې به ګټې اخېستنې ته چمتو شي.

**اوبه**: د افغانستان سيندونه د اوبو د برېښنا د ترلاسه کولو ډيرې ښې سر چينې دي، له دې پلوه يو شمېر هغه بندونه چې پخوا د برېښنا د توليد لپاره جوړ شوي وو، کافي نه دي او بايد چې دبرېښنا د انرژۍ دتوليد لپاره له سيندونو څخه لازياته ګټه واخېستل شي.

همدارنګه هغه تور بينونه چې د اوږدو کلونو په ترځ کې ورڅخه کار اخېستل شوی، ويجاړ او استهلاک شوي او د بند کاسې يې هم له رسوبي موادو څخه ډکې شوې دي، نو ځکه بيارغاونې ته کلکه اړتيا لري.

**باد**: دهېواد په ځينو ولايتونو کې د برېښنا د توليد لپاره د باد له انرژۍ څخه کار اخېستل شوى دى، خو ډير لږ،حال داچې په هېواد کې ډير موسمي بادونه لګيږي لکه دهرات ۱۲۰ ورځني بادونه او نور.

که چيرې په هېواد کې د باد له انرژۍ څخه د استفادې لازيات امکانات برابر شي، د باد له انرژۍ څخه به لازياته برېښنا تر لاسه شي او برېښنا ته به دهېواد اړتياوې پوره شي.

**لمر**: دهېواد په ځينو سيموکې د لمر له انرژۍ څخه ډير لږکار اخېستل شوى، چې په دې لړکې د پخلي د ديګونو، لمريز وځراغونو او کلکتورونو (د اوبو تودوونکو) او نورو نومونه اخېستلاى شو.

ښه به وي چې په هېواد کې د لمر له انرژۍ څخه د کار اخېستو پراخه زمينه برابره شي.

**اوسپنه**: په دې لړکې د باميانو د حاجي ګګک د اوسپنې کان، دکندهار د خاکريز زيرمې، دهرات غوريان، دبدخشان سياه دره او دجبل السراج او پغمان د اوسپنې زيرمې ديادونې وړدي. دحاجي ګګک دکان زيرمې دهېواد له نورو ټولو برخو څخه زياتې دي، د هغو په هکله څېړنې روانې دي، په راتلونکې کې به ترکارلاندې ونيول شي او په کال کې به په اټکلي توګه يوميليونه ټنه پولاد ورڅخه ترلاسه شي.

**مس**: دمسو زيرمې د زابل په کندلان، دکابل په دربند، د لوګر په عينک او د هرات په شيدا سيمه کې دي چې له پخوا وختونو ورڅخه ډېره لږه او په سيمه ييزه بڼه کار اخېستل کيده.

دلوګر د عينک دمسو کان چې دهېواد يو ډېر مهم کان دی. په دې وروستيو کې يې له يوې چينايي کمپنۍ سره قرار داد شوی دی او زموږ يوشمېر هېواد والو ته به دکار زمينه برابره کړي او ډېر عايد به ورڅخه ترلاسه شي.

**سرب او جست**: دهېواد د سربو او جستو زيرمې دکندهار په بي بي ګوهر، دهرات په چشت، د هزاره جاتو په تولک او د غوربند په فرينجل کې دي، چې دهغو د زيرمو را ايستل په پراخه اندازه نه دي تر سره شوي.

**کروم**: دخوست، ميدان وردګ، د لوګر د محمد اغې او کلنګار د کرومو د کانونو له زيرمو څخه يوه اندازه کار اخېستل شوی دی. د خوست د کروم د کان توليدات د امنيت د نشتوالي له کبله نه دي پيل شوي چې د لازمو امکاناتو په چمتو کېدو سره به د هغو د را ايستلو چارې تر سره شي.

**ګرانبيه ډبرې**: د الماسو شتوالی په بدخشان، مرکزي افغانستان او غوربند کې اټکل شوی دی او دلاجوردو زيرمې د بدخشان په جرم کې او د لال زيرمې د بدخشان په اشکاشم کې شته.

دياقوتو زيرمې د سروبي په جګدلک، زمرد د پنجشير د درې د خنج، بزمال او مکني په سيمو او د کونړ د باډيل په دره کې شته دي.

د قيمتي فلزاتو کانونه او په دې لړکې دسروزرو کان د بدخشان په يفتل، دغزني په مقر، دکلات په زرکشانو او د کوکچې د سيند په بسترکې شته چې پراخه برخه يې نيولې ده.

د سپينو زرو زيرمې په پنجشير، د هرات په سيم کوه او د کندهار په خاکريز کې تثبيت شوي دي.

تر اوسه پورې د ګرانبيه ډبرواو قيمتي فلزاتو له زيرمو څخه په فني توګه ګټه نه ده اخېستل شوې

د هېواد له کانونو او د انرژۍ له سرچینو څخه کار اخېستل له یو شمېر ستونزو سره مخامخ دي لکه د ترانسپورتي لارو نشتوالی، د فني پرسونل کمښت، د تخنیکي وسایلو او د پوره پانګې نشتوالی او نور . همدارنګه د وروستیو کلونو جګړې او نا امنۍ او په خپل سر او غیر فني توګه د کانونو ایستل هم دستونزو په لړکې شمېرل کیدای شي، چې دولت ته د نه جبران کیدونکو زیانونو څخه پرته دکانونو د ویجاړېدو لامل هم شوې دي، همدارنګه له هېواد څخه بهر ته دهغو قاچاق کول هم داندیښنې وړدي. که چیرې په هېواد کې د انرژۍ له سرچینو او کانونو څخه تخنیکي او فني ګټه واخېستل شي او په دې برخه کې پانګونه وشي، هرکال به دپام وړ عواید له دې لارې ترلاسه او هېواد والوته به دکار زمینه هم برابره شي.

## د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې دوه ډلې شي، لومړۍ ډله دې دلوست دمتن په لوستلو د انرژۍ د سرچینو او د هغو د تولید په هکله او دویمه ډله دې د هېواد د کانونو د حالت اوله هغو څخه دکار اخېستو په اړه خبرې وکړې او د ډلې استازی دخپل بحث پایلې دې نوروته وړاندی کړي.

## پوښتنې:

۱- په افغانستان کې د انرژۍ کومې سرچینې شته او دهغو له څو ډولونو څخه تر اوسه پورې کار اخېستل شوی دی؟
۲- دهېواد د اوبو له سرچینو څخه په څه ډول د برېښنا د ترلاسه کولو لپاره ښه او اعظمي استفاده کولای شو؟ توضیح یې کړئ.
۳- کوم ډول فلزات او ګرانبیه ډبرې په هېواد کې شته، نوم یې واخلئ.
٤- په هېوادکې وروستیو جګړو او نا امنیو د کانونو او د انرژۍ له سر چینو څخه کار اخېستل له کومو ستونزو سره مخامخ کړي دي؟ توضیح یې کړئ.
٥- دکروم د ډبرو زیرمې دهېواد په کومو برخو کې تثبیت شوي دي؟ نوم یې واخلئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د دویم څپرکي د افغانستان دکانونو او انرژۍ برخه ولولئ دهغې لنډیز په یوه پاڼه کې ولیکئ او په راتلونکي لوست کې دهغو په هکله خپلو ټولګیوالوته معلومات ورکړئ

# صنايع او سوداګري

تاسي په دويم څپرکي کې د افغانستان د کانونو او انرژۍ په هکله معلومات ترلاسه کړل. په دغه څپرکي کې به د افغانستان له صنايعو او سوداګرۍ سره آشنا شئ.

## ـ په دې څپرکي کې لولو:

په افغانستان کې صنايع او د هغو اهميت

ـ لاسي صنايع

ـ ماشيني صنايع

• توريزم او د هغه اقتصادي اهميت

ـ د هېواد ګرځندويي سيمې

ـ د ګرځندوی احصائيه

• سوداګري او اهميت يې

ـ کورنۍ سوداګري

ـ بهرنۍ سوداګري

• د هېواد د وارداتو او صادراتو انډول

• بانک

ـ مرکزي بانکونه

ـ سوداګريز بانکونه

• د بانک د چارو د پرمختګ څرنګوالی

• د صنايعو او سوداګرۍ د حالت څېړل

## د څپرکي عمومي هدفونه:

**زده کوونکی به د دغه څپرکي په لوستلو سره لاندېنيو پوهنيزو موخوته ورسيږي:**

- سوداګري به و پېژني.
- د سوداګرۍ بيلابيل ډولونه به وپېژني.
- د هېواد د صادراتو او وارداتو پر اندازې او انډول په پوه شي.
- د صنايعو پر اقتصادي اهميت به پوه شي.
- د هېواد د صنايعو ډولونه به و پېژني.
- د هېواد د صنايعو پر ستونزو او خنډونو به پوه شي.
- بانک به و پيژني.
- د بانک د کار په څرنګوالي به وپوهيږي.
- د ګرځندوی (توريزم) په اقتصادي او فرهنګي اهميت به پوه شي.
- د هېواد توريستي سيمې به وپېژني.

**زده کوونکی به ددغه څپرکي په لوستلو سره لاندېنيو مهارتي هدفونوته ورسيږي:**

- سوداګري به تعريف کړی شي.
- د سوداګرۍ ډولونه به فهرست کړای شي.
- د هېواد د وارداتو او صادراتو اندازه به بيان کړي.
- د صنايعو اقتصادي اهميت به توضيح کړي.
- د هېواد د صنايعو ډولونه به فهرست کړي.
- د صنايعو ستونزې او خنډونه به وشمېري.
- بانک او د هغه د کارکولو څرنګوالی به توضيح کړي.
- د توريزم معنا به وويلای شي.
- د توريزم اقتصادي اهميت به توضيح کړي.
- د هېواد د توريستي سيمو نوم به واخېستلای شي او هغه به د نقشې پرمخ تثبيت او وښيي.

## دوه ویشتم لوست

# په افغانستان کې صنایع او د هغو اهمیت




په افغانستان کې د غالی اوبدلو صنعت

تاسې پوهیږئ چې صنعتي فعالیت د توکو ارزښت، کیفیت او گټورتوب لوړوي؟

صنعت یو تولیدي فعالیت دی چې د هغه په ترځ کې له هغو لومړنیو یا خامو توکو لکه طبیعي، کرنیزه، کیمیاوي او حیواني توکو څخه چې له ځمکې ترلاسه کیږي د کار وړ شیان او اجناس جوړیږي او د بشري ټولنو اړتیاوې وربانديې بشپړیږي. صنعت هم د لاس او هم د ماشین په واسطه پر مخ تلای شي.
صنعتي فعالیت چې د ارزښت، کیفیت او گټورتوب د لوړولو په خاطر د توکو د بڼې د بدلون عملیه ده، د بشریت په تاریخ کې اوږده سابقه لري.
صنعتي انقلاب چې د اتلسمې پیړۍ په دویمه نیمایي کې په اروپا کې پیل شو، په پای کې یې بشري ټولنې ته ژور بدلون ورکړ او د خلکو ژوند ته یې بله بڼه ورکړه.
د لومړنیو یا خامو توکو لکه د کاني توکو، کرنیزو تولیداتو او نورو د بڼې بدلون ترڅو په وروستیو صنعتي پخو اجناسو واړول شي، بیلابیل صنعتي پړاوونه تېروي، د بیلگې په توگه:
که چیرې تاسې هغه محصولات او اجناس کتلي وي چې په پلورنځي کې یې پیرئ، لیدلي به مو وي چې پیرودل شوی جنس دومره هم اسانه په لاس نه دی راغلی، بلکې بیلابیل صنعتي پړاوونه یې تېر کړي ترڅو چې پلورنځي کې د پلورل کیدو وړ گرځیدلی دی. موږ کولای شو د موضوع د لا روښانه کولو په خاطر یو کتاب چې په کتاب پلورنځي کې پلورل کیږي د بیلگې په توگه یاد کړو. دغه کتاب چې پلورل کیږي کارېږي د یوه نیالگي له کینولو څخه پیل کیږي، کله چې نیالگیو ښه وده وکړه او لویې ونې ورڅخه جوړې شوې، پرې شوې لرگي یې فابریکې ته وړل کیږي، هلته ورڅخه کاغذ جوړیږي، کله چې کاغذ جوړشو، مطبعې ته لیږل کیږي، مخکې له مخکې کوم کتاب چې تالیف شوی وي هغه طرحه او په

کمپیوټر یا کوم بل شکل باندې ډیزاین شوي، په کاغذ باندې چاپ او د صحافی له پړاو څخه وروسته د کتاب په بڼه چمتو کیږي او د خرڅلاو لپاره کتاب پلورنځي ته راوړل کیږي.
په همدې توګه که چیرې موږ ځیر شو ټول صنعتي محصولات د کار بیلابیل پړاوونه تیروي او بیا د استفادې وړ ګرځي.
د صنایعو، په تیره بیا د ماشیني صنایعو ارزښت په دې کې دی چې په لږ وخت کې ډیرو موادوته د بڼې بدلون ورکوي، د هغو په څرنګوالي او بیه کې لوړوالی راځي.
زموږ خلک له ډیر پخوا څخه په کوچنیو لاسي دستګاوو کې په لاسي صنایعو بوخت وو. فرش، لکه: غالي، لمڅی، ټغرونه او نور د اړتیا وړ وسایل یې ځان ته جوړول.
زموږ هیواد دبیلابیلو او ډیرو کانونو، کرنیزو ډول ډول محصولاتو او د پوره کار ځواک په لرلو سره صنایعو او د هغو ودې ته ډیره ښه زمینه چمتو کولای شي. که چیرې حکومت وکولای شي چې د ملي صنایعو د ملاتړ لپاره له یوې غوره اقتصادي پالیسۍ څخه کار واخلي ، د فابریکو او کارځایونو جوړولو ته شرایط برابر کړي، نو زیات شمیر ضروري اجناس او مالونه به د هیواد دننه تولید او ملي عاید به لا اوچت شي.



## د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې درې ډلې شي، له متن، تصویرونو او د لوست له بیلګو څخه دې کار واخلي، لاندې فعالیتونه دې ترسره او بیا دې د خپل کار پایله خپلو ټولګیوالوته وړاندې کړي.
لومړۍ ډله: د خپلو جامو په هکله خبرې وکړئ چې په څه ډول جوړې شوي او کوم صنعتي پړاوونه یې تیر کړي دي؟
دویمه ډله: د خپل ټولګي د میزونو او څوکیو په هکله بحث وکړئ د هغو صنعتي پړاوونه او چمتو کول توضیح کړئ.
دریمه ډله: د خپل ښوونځي د ودانۍ په هکله خبرې وکړئ چې له کومو توکو څخه جوړه او کوم صنعتي پړاوونه یې تیر کړي دي.

| لومړني خام توکي | صعنتي شوي توکي |
|---|---|
| پنبه | |
| | غالي |
| ګنې | |
| | ډوډۍ |
| لرګي | |
| | بوټان |
| | غوړي |
| اوسپنه | |
| | خیدک (پنیر) |



## پوښتنې:

۱ ـ صنعت څه ته وایي توضیح یې کړئ؟
۲ ـ د صنایعو د ارزښت په هکله معلومات ورکړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د لاندې جدول په تشو ځایونو کې د لومړنیو یا خامو توکو او صنعتي شوو اجناسو (مالونو) نومونه په خپله کتابچه کې ولیکئ.

## الف ـ لاسي صنایع



۴۲- شکل

په تېر لوست کې د صنایعو او د هغو د اهمیت په هکله بحث وشو، په دغه لوست کې به د هېواد ماشیني او لاسي صنایع وپېژنو.

که د هېواد په اقتصادي وده او پرمختیا کې د ټولنیزو او طبیعي بیلابیلو عواملو اغیزه په تېره بیا د صنایعو په وده او پرمختګ کې وڅېړو، ویه لیدل شي چې د هېواد د صنعتي کیدو لپاره ډېره ښه زمینه شته، نو د هېواد صنایع په لاسي او ماشیني برخو کې څیړو:

د افغانستان خلکو له لرغونو زمانو راهیسې د کورنیو اړتیاوو او بهرنۍ سوداګرۍ لپاره په خپل لاس جوړشوو دستګاوو باندې د اړتیا وړ شیان جوړول او خپلې اړتیاوې یې پوره کولې.

کلیوالي صنعت کارانو به په خپلو ډېرو لومړنیو وسایلو سره د صنعتي اجناسو په جوړولو لاس پورې کاوه، چې له لاندېنیو سرچینو څخه یې کار اخیست:

۱. له څارویو څخه تر لاسه کېدونکو لومړنیو توکو لکه وړیو، ویښتانو او د وریښمو د چنجیو له تارونو او نورو څخه.

۲. له نباتي سرچینو لکه پنبې، کتان، سنلو او نورو څخه.

۳. کاني توکو لکه اوسپنې، مس، سرو او سپینو زرو او له خټو او نورو څخه.

ـ هغه د لاسي صنایعو محصولات چې د څارویو له الیافو څخه جوړیږي مشهورېې غالۍ، لیمڅۍ، برک، ټغر، شړۍ او نور دي.

د غالۍ اوبدلو صنعت د افغانستان يو ډېر مهم لاسي صنعت او غالۍ صادراتي مهم قلم او لاسي صنعت دی چې زياتره په شمال، شمال لويديځ او لويديځو ولايتونو کې توليدېږي.

ـ د لاسي صنايعو هغه محصولات چې له مالوچو څخه جوړېږي دادي: خمتايي رختونه، کشمېره، پټو، لونګۍ، سطرنجي اونور. پخوابه چې په افغانستان کې په کومو ځايونو کې پنبه ډېره کرل کيدله، هلته به کليوالو پنبه يې يا نخي رختونه ورڅخه جوړول.

ـ زرګران ، مسګران او پښان له فلزاتو څخه د کار وړ شيان لکه يوم، تبر، تيشه (ترېنځ)، چاقو، چاړه او مسي لوښي لکه ديګونه او نور، اوګاڼې له سرو اوسپينو زرو او قيمتي ډبرو لکه لاجوردو او ياقوتو څخه جوړوي.

**ب ـ ماشيني صنايع**: د واکمنۍ په وخت نوي ماشيني صنايع او عصري فابريکې د لومړي ځل لپاره د امير شيرعلي خان د واکمنۍ په وخت او لږ وروسته بيا په يوڅه پرمختللې بڼه د امير عبدالرحمن خان د واکمنۍ په وخت د نولسمې پيړۍ په وروستيو کې په هېواد کې رامنځته او لومړنۍ عصري فابريکه د کابل ماشين خانې په نوم تاسيس شوه، په دغې فابريکې کې د توپ، ټوپک او حربي مهماتو او سرې او تودې وسلې په ګډون حربي مهمات توليد او جوړيدل. وروسته بيا ماشيني صنايعو يوڅه وده وکړه. په ۱۳٦۵ هـ ل کال کې په هېواد کې ۳۹۱ صنعتي موسسې فعالې او په کار بوختې وې چې له هغو څخه يې ۲۷٤ د خصوصي سکتور او پاتې ۱۱۷ يې د دولتي او مختلط سکتور وې.

له دې امله چې د ماشيني صنايعو په رامنځ ته کيدو او وده کې څر خوونکې ځواک يا انرژي لومړنۍ اړتيا بلل کيږي، نوځکه په هغو سيمو کې چې بريښنا اوګڼ خلک وي لکه په کابل، کندهار، هرات، مزارشريف، کندز او جلال آباد کې، صنايع ځای پرځای رامنځ ته شوي دي.

دا هم بايد وويل شي چې زموږ په هېواد کې د ٤۰ کلنو جګړو پرمهال، زيات شمېر صنعتي تاسيسات زيانمن شول او هغوی ته لوی زيان واوښت، اوس يې بيارغاونه او بيرته جوړول پرمخ ځي او يو شمېر کورنيو او بهرنيو پانګوالو د نويو صنعتي موسساتو په جوړولو هم لاس پورې کړی دی.

**ج ـ د ماشيني توليداتو احصائيه**: لکه چې مخکې وويل شول، په افغانستان کې ماشيني صنايع اوږده سابقه لري، خو په دې وروستيو کې د ناوړه سياسي شرايطو، جګړو او لږې پانګې اچونې له کبله ځنډ او خنډ سره مخامخ شوي، بياهم هغه ماشيني صنايع چې په هېواد کې شته او يا پخوا وې، له هغوسره په لانديني جدول کې د اضافي معلوماتو په توګه آشناشئ.

| گڼه | ماشيني توليدي صنايع | د توليد ډول | توليدي ناصبه ظرفيت | اوسني چمتو ظرفيت | اوسنی حقوقي شخصيت |
|---|---|---|---|---|---|
| ١ | د بگرامی نساجي | تاري ټوکران | ١٦ ميليونه متره | فعاله نه ده | پروژه |
| ٢ | د کندهار نخي نساجي | // // | ٤٠ // // | // // | تصدي |
| ٣ | د کندهار وړۍ اوبدل | وړېښمين رخت | يو ميليونه متره | // // | // |
| ٤ | د هرات نخي نساجي | تاري ټوکران | ١٢,٥ ميليونه متر | // // | پروژه |
| ٥ | د بلخ نساجي | // // | ٢٢ ميليونه متره | په کال کې ٣٠ ټنه تجارتي تار | تصدي |
| ٦ | د گلبهار نساجي | // // | ٥٠ ميليونه متره | فعاله نه ده | سهامي شرکت |
| ٧ | کابل نساجي | // // | يو ميليونه متره | // // | // // |
| ٨ | د پلخمري نساجي | // // | ٢٤ ميليونه متره | په سلو کې ٥٠٪ فعاله ده | // // |
| ٩ | د مزار د سرې او برېښنا فابريکه | د يوريا سره | په کال کې ١٠٥ زره ټنه | په ٢٤ ساعتونو کې ١٠٠ ټنه | تصدي |
| ١٠ | لومړی غوري سمنټ | سمنټ | په کال کې ١٢٠٠٠٠ ټنه | يوه شپه ورځ کې ٤٠٠ ټنه | خصوصي |
| ١١ | دويم غوري سمنټ | // // | په کال کې ٣١٠٠٠٠ ټنه | يوه شپه ورځ کې ١٠٣٣ ټنه | // // |
| ١٢ | د هرات سمنټ | // // | په کال کې ٢١٠٠٠٠ ټنه | يوه شپه ورځ کې ٧٠٠ ټنه | دولتي پروژه |
| ١٣ | د کابل د تار اوبدلو دستگاه | تار | په کال کې ٥٥٠ ټنه | غير فعاله ده | خصوصي |
| ١٤ | د کابل د اوبدلو فابريکه | رخت | په کال کې ١,٨٣ مليونه متره | غير فعاله | خصوصي |
| ١٥ | د کندوز سپين زر | محلوج، (مالوچ) او غوړي | په کال کې ١١٠٠٠٠ ټنه | لږ ي فعاله شوې په اجاره ورکړل شوې | دولتي تصدي |
| ١٦ | د بلخ جن او پرس فابريکه | // // | ٤٠٠٠٠ دانه لرونکې پنبه (پومبه) | // // | // // |
| ١٧ | بست تصدي | // // | په کال کې ٢٥٠٠٠ ټنه | په کال کې ٨٥٠٠ ټنه | تصدي |
| ١٨ | د هرات د مالوچو شرکت | پنبه، مالوچ، غوړي او صابون | په کال کې ١٠٨٠٠ ټنه | يوخه فعاله | // // |
| ١٩ | مرکزي سيلو | ډوډۍ او اوړه | ٥٠ زره ټنه ذخيره | | |

| ګڼه | ماشيني توليدي صنايع | د توليد ډول | توليدي ناصبه ظرفيت | اوسنی چمتو ظرفيت | اوسنی حقوقي شخصيت |
|---|---|---|---|---|---|
| ۲۰ | پلخمري سيلو | // // | ۲۰ زره ټنه ذخيره | فعاله ده | // // |
| ۲۱ | دکندهار سيلو | د غنمو ذخيره | په ۲٤ ساعتونو کې ۶۰ ټنه اوړه کول | غير فعاله | // // |
| ۲۲ | د بلخ سيلو | ډوډۍ او اوړه | | فعاله ده | دولتي تصدي ده |
| ۲۳ | د هرات سيلو | د غنمو ذخيره | په کال کې ۲۰ زره ټنه غنم | // // | // // |
| ۲٤ | د بغلان د شکرې پروژه | شکره | په کال کې ۱۰ زره ټنه | // // | دولتي پروژه ده |
| ۲۵ | د هلمند حجارې او نجارې | مرمر، موبل او فرنيچر | | بيارغول شوې خو فعاله نه ده | ګډ شرکت |

## د ټولګي دننه فعاليت:

په خپلو کتابچو کې لاندې جدول په مناسبو کلماتو سره د لوست د متن او تصويرونو په کتلو او د ورکړل شوې بيلګې څخه په استفادې ډک کړئ.

| حيواني منابع (سرچينې) | صنعتي شوي مواد | نباتي منابع | صنعتي شوي مواد | کاني منابع | صنعتي شوي توکي |
|---|---|---|---|---|---|
| کرک (د وزو له وزغنو جوړيږي) | پټو، جرابې، (دستکشې) | چغندر | شکره | مس | ديګې، کوزه او چلمچې |
| | | | | | |
| | | | | | |
| | | | | | |
| | | | | | |

## پوښتنې

۱ ـ ستاسو له نظره د لاسي صنايعو کوم ډول توليدات ډېر ارزښت لري او ولې؟

۲ـ ستاسو له نظره تر اوسه پورې په هېواد کې کوم لاملونه (عوامل) د ماشيني صنايعو د ودې خنډ ګرځېدلي وو؟

۳ـ پېښان، مسګران، او زرګران له کومو منابعو څخه په څه ډول کار اخلي او کوم شيان جوړوي؟

٤ـ ماشيني صنايع زياتره په کومو ځايونو کې راټول شوي دي او ولې؟

## له ټولګي څخه بهر فعاليت:

د ماشيني صنايعو د مؤسساتو د ځانګړتياوو جدول وګورئ د هغه له مخې د لاندېنيو پوښتنو ځوابونه و مومئ او د خپل کار پايله په بل لوست کې خپلو ټولګيوالو ته وړاندې کړئ.

۱. زموږ په هېواد کې د اوبدلو څو فابريکې شته؟ کومې يې فعالې او کومې نه دي فعالې؟

۲. زموږ په هېواد کې د خوراکي توکو څو فابريکې شته او کومې يې ډېر توليدات لري؟

۳. ستاسو له نظره ستاسې په سيمه کې کومه فابريکه شته چې نوم يې په دغه جدول کې نه ليدل کيږي؟

## ۲،۳ توریزم او د هغه اقتصادي اهمیت:




په هرات کې تاریخي او لرغوني آثار چې له کلتوري پلوه توریستانو ته ډېر اهمیت لري.

توریزم Tourism یا ګرځندوی یو ډول مسافرت او ګرځېدل دي چې موخه یې د نړۍ د بیلابیلو سیمو علمي څېړنه، کتنه، تفریح، سیل او سیاحت دی.

توریستي سفرونه معمولاً کاري او تفریحي موخې لري، یو ګرځندوی هغه څوک دی چې د خپل اوسېدو ځای څخه بهر نوروسیمو، ښارونو او هېوادونو ته داسې یو سفر کوي چې له یوې شپې ورځې کم نه وي او له یوه کال څخه زیات نه وي. ګرځندویان معمولاً د یوې توریستي سیمې د طبیعت یا کلتور سره مینه او هغه ته پاملرنه لري. شتمنو خلکو به له ډېر پخوا څخه لیرې سیمو ته سفرونه کول چې په هغو ځایونو کې ښکلي او تاریخي ځایونه او ودانۍ وګوري او د نړۍ له طبیعي او کلتوري شتمنیو څخه خبرشي. له همدې امله نن ورځ توریزم یا ګرځندوی په نړۍ کې د اقتصادي ودې په یوه لویه سرچینه اوښتی دی. او د نړۍ په ډېرو هېوادونو او سیمو کې مهمه عایداتي سرچینه شمېرل کیږي. نن ورځ زیاتره هېوادونه هڅه کوي چې په خپلو هېوادو نوکې د ګرځندوی د ودې او پراختیا لپاره امکانات چمتو او پراخ کړي، دا ځکه چې ګرځندوی د عوایدو د ترلاسه کولو یوه لاره ده.

افغانستان په اسیا کې د یوه ځانګړي جغرافیایي موقعیت، تاریخي لرغونتوب، پخوانیو ودانیو، ښکلي طبیعت، غوره هوا او د ګرځندویي سیمو په لرلو سره په ډېرو پخوانیو کلونو کې د وریښمو د کاروانونو د سوداګریزو انډیو د ورلو او راوړلو لاره وه. بودایانو او کوشانیانو له همدې لارې له چین څخه د اروپا تر لویدیځ پورې تګ راتګ کاوه. دغه تګ ـ راتګ د ګرځندویانو، په تېره بیا د بودایي راهبانو پام دې خواته راواړاوه او د بامیانو له اسرارو ډکه سیمه یې د نمانځنې د ځای په توګه غوره او هلته یې د بودا لویې او نامتو مجمسې جوړې کړې.

د بودیزم لارویان او نور گرځندویان د نړۍ له هر گوټ څخه مخ په دې خوا رامات شول، دهېواد همدا تاریخي اثار او دگرځندوی وړ سیمې وې چې دگرځندویانو د پام وړ گرځیدلې وې.
د افغانستان دولت په ۱۳۳۷ هـ ل کال کې دگرځندوی مؤسسه (اوسنی افغان تور) په دې برخه کې د اسانتیاوو د رامنځته کولو په خاطر جوړه اوپه ۱۳٤٤ هـ ل. کال کې یې دگرځندوی د نړیوال سازمان غړیتوب ترلاسه کړ.
په تېرو څو لسیزو کې توریزم یاگرځندوي په افغانستان کې د عایداتو یوه سرچینه وه. زموږ په هېواد کې ډېر لرغوني آثار او تاریخي ځایونه لکه په بامیانو کې د بودا مجسمې او یو شمېر نور تاریخي آثار، د بلخ د لرغوني ښار آثار، خیبر دره، په هرات کې زیات شمېر تاریخي اثار او همدارنگه په کندهار، غزني، ننگرهار او نورو کې شته. د جگړو پر مهال په افغانستان کې گرځندویي ته هم ډېر زیان واوښت، یوازې د گوتو په شمار خبریالانو افغانستان ته تگ راتگ درلود. په دې وروستیو کې چې امنیتي شرایط یوڅه ښه شوي دي او که د ټول هېواد په سراسر کې ډاډمنه سوله راشي او دولت دگرځندوی په هکله ځانگړې پاملرنه وکړي، یو شمېر هوټلونه، د ورلو راوړلو وسایل او نور امکانات برابر کړي، نو افغانستان به یو ځل بیا دگرځندویانو لپاره یو په زړه پورې هېواد شي. د افغاستان، هغه عواید چې په یو شمېر دگرځندویی سیمو کې ترلاسه شوي وو او په میلیون ډالرو محاسبه شوي چې په لاندیني جدول کې ښودل کیږي.

| ۱۹۷۳ | ۱۹۷٤ | ۱۹۷٥ | ۱۹۷٦ | ۱۹۷۷ | ۱۹۷۸ |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱۱ | ۱۲ | ۱۲ | ۲۸ | ۷ | ۱ |

### د ټولگي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي، لومړۍ ډله دې د متن تصویرونو او نقشو په کتلو سره دگرځندوی (توریست) او گرځندویي (توریزم) په هکله او دویمه ډله دې د لوست د نقشو متن او انځورونو په کتلو سره دگرځندوی د اقتصادي اهمیت په هکله بحث خبرې او اترې وکړي، وروسته دې د هرې ډلې استازي د خپلو خبرو اترو پایله ټولگیوالوته وړاندې کړي.

### پوښتنې:

۱ـ گرځندوی (توریست) څوک دی؟
۲ـ ایا دگرځندوی، سیاح او توریست ترمنځ توپیر شته؟ په دې هکله توضیح ورکړئ.
۳ـ دگرځندویي (توریزم) اقتصادي اهمیت بیان کړئ.

### له ټولگي څخه بهر فعالیت:

زده کوونکي دې په درېو کسیزو ډلو کې د افغانستان دگرځندوی او (افغان تور) د موسسو د فعالیت په اړه او د دغو موسسو د خپرونو او ځانگو له معلوماتو څخه په گټې اخېستنې سره د هېواد د گرځندوی په اړه د په زړه پورې سیمو د تصویرونو په لرلو سره په دوه پاڼو کې مطلب ولیکي او خپلو ټولگیوالوته دې ولولي.

## پنځهویشتم لوست

# الف ـ د هېواد ګرځندويي سيمې

۴۴- شکل

تاسې په مخکې لوست کې د ګرځندويي او د هغې د اقتصادي اهميت په اړه معلومات ترلاسه کړل. په دغه لوست کې به د هېواد د ګرځندويي سيمو او احصائيو په هکله پوه شئ.

ـ ايا تاسې د هېواد کومه ګرځندويي (توريستي) سيمه ليدلې ده؟

که ستاسې ځواب هو وي کومه سيمه، کله، هلته موخه ليدلي او هلته مو څه وکړل؟

د افغانستان ګرځندويي سيمې زياتره طبيعي ښکلي ځايونه (ښايسته شرشرې، د سيندونو په زړه پورې غاړې، ولاړې اوبه، غرونه او نور او همدارنګه کلتوري سيمې او اثار موزيمونه، مذهبي او تاريخي ودانۍ او د لاسي صنايعو بازارونه او نور) وي.

د افغانستان د ګرځندوی مهم ښارونه او سيمې دادي:

باميان، بلخ، سمنګان، هرات، غور، غزني، کندهار، کابل، جلال آباد، لښکرګاه او نور.

په باميانو کې توږل شوې سمڅې، مجسمې او بند امير په بلخ ولايت کې د روضې مبارکې زيارت. په

هرات کې تاریخي ځلي، د خواجه عبدالله انصاري زیارت، خواجه غلتان ،عیاران ځلی، اختیارالدین کلا.
په غور کې جام منار، په غزني کې تاریخي ځلي، د سردار غونډۍ، بالاحصار او په ننګرهار کې تاریخي آثار اوله هغې جملې څخه هڅه او نور د یادولو وړ دي.
په ځینو ښارونو لکه هرات کې لرغوني آثار دومره ډېر دي چې یونسکو دغه ډول سیمې د خپل پوښښ لاندې غوره کړې دي. په دې وروستیو کې غزنی د یو شمېر پخوانیو زیارتونو او ودانیو له امله د اسلامي تمدن د یوه مرکز او توریستې ښار په توګه پېژندل شوی دی.



د جام منار هم لکه د هېواد د نورو لسګونو اثارو په شان ځانګړې تاریخي او کلتوري ارزښت لري



د میرویس نیکه زیارت چې ګرځندویانو ته کلتوري او تاریخې ارزښت لري.

دا هم باید وویل شي چې افغانستان ډېر غوره د ګرځندوی طبیعي ځایونه او پارکونه هم لري چې د بیلګې په توګه، د پامیر لوی او کوچنې غرونه، په نورستان کې د لیدلو وړ طبیعي سیمې، په کابل کې یو شمېر پارکونه او باغونه، د جلال اباد یو شمېر سیمې، هرات، کندهار، مزارشریف، د قرغې بند او په کابل کې د پغمان دره او په نورو بیلابیلو ولایتونو کې یو شمېر طبیعي ساحې چې د افغانستان د ګرځندوی په نقشه کې یې کتلای شئ.

**ب ـ دګرځندوی احصائیه**:
لکه چې مخکې وویل شول، په تېرو لسیزوکې ګڼ شمېر ګرځندویان زموږ هېواد ته راتلل او د عایداتو لویه سرچینه یې جوړوله، خو په څلورو لسیزو جګړو کې چې امنیتي ستونزې رامنځته شوې، ګرځندوی ته ډېر زیان واوښت او افغانستان ته د ګرځندویانو تګ راتګ لږ شو چې دغه شمېرنې په لاندې جدول کې پرتله شوي دي:

( ۵ ) جدول: د هغو گرځندویانو شمېر چې په بیلابیلو کلونو کې افغانستان ته راغلي دي

| د هېواد نوم | ۱۹۷۵ | ۱۹۷۶ | ۱۹۷۷ | ۱۹۷۸ | ۱۹۷۹ | ۱۹۸۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لویدیز المان | ۸۶۴۹ | ۸۹۰۷ | ۹۰۸۵ | ۷۴۹۶ | ۱۸۱۷ | ۲۸۵ |
| فرانسه | ۹۴۳۱ | ۷۷۹۴ | ۶۷۷۹ | ۴۷۸۱ | ۱۱۵۳ | ۲۳۴ |
| استرالیا | ۱۰۹۴ | ۱۰۵۵ | ۴۳۹۷ | ۳۰۷۰ | ۹۶۷ | ۲۸ |
| د امریکا متحده ایالات | ۹۴۰۱ | ۸۹۵۰ | ۹۰۱۱ | ۶۳۸۹ | ۱۰۳۹ | ۷۹ |
| هند | ۸۷۱۷ | ۸۵۲۱ | ۱۱۱۸۵ | ۹۷۴۴ | ۴۳۵۰ | ۹۹۲ |
| انگلستان | ۹۷۷۷ | ۱۰۱۰۸ | ۱۱۵۲۶ | ۹۱۰۲ | ۱۸۵۰ | ۱۲۸ |
| پاکستان | ۱۳۶۴۸ | ۲۰۱۳ | ۳۵۱۰۵ | ۲۳۶۶۳ | ۱۰۱۲۶ | ۲۴۶۶ |
| نور هېوادونه | ۳۰۰۷۷ | ۲۴۴۷۸ | ۳۱۷۲۰ | ۲۷۷۴۴ | ۸۹۰۲ | ۲۴۳۸ |
| ټول | ۹۰۸۹۴ | ۹۳۰۲۶ | ۱۱۸۳۶۰ | ۹۱۹۸۹ | ۳۰۲۰۴ | ۶۶۲۳ |

( ٦ ) جدول: په څو وروستیو کلونو کې د گرځندویانو شمېر او له هغو څخه ترلاسه شوي عواید

| شاخصونه | ۱۹۹۵ | ۱۹۹۶ | ۱۹۹۷ | ۱۹۹۸ |
|---|---|---|---|---|
| د گرځندویانو شمېر (په زروتنو) | ۴ | ۴ | ۴ | ۴ |
| ترلاسه شوي عواید (په میلیون ډالرو) | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ |



٤٧- شکل

د بامیان د ولایت د امیر بند یوه څنډه



## د ټولګي دننه فعالیت

زده کوونکي دې په پنځو ډلو وویشل شي، هره ډله دې د افغانستان د ګرځندوی نقشه وګوري، لاندې دندې دې ترسره کړي او بیا دې د خپل کار پایله په ټولګي کې وړاندې کړي:

- لومړنۍ ډله دې د ګرځندوی مهم ښارونه او سیمې لېست کړي.
- دویمه ډله دې هغه سیمې لېست کړي چې هلته اسلامي عبادت ځایونه او زیارتونه دي.
- دریمه ډله دې د لاسي صنایعو بازارونه لېست کړي.
- څلورمه ډله دې د طبیعي ښکلو منظرو لرونکې، په زړه پورې او د لیدلو وړ سیمې لېست کړي.
- پنځمه ډله دې هغه سیمې وښیي او لېست کړي چې هلته د ګرځندوی د خدماتو ځانګې شته.



## پوښتنې:

۱ـ د افغانستان د ګرځندوی مشهورو سیمو نوم واخلئ.

۲ـ د افغانستان کومه توریستي ګرځندویي موسسه اوس د ګرځندوی خدمات ترسره کوي او ستاسو په فکر دغه موسسه کوم ډول خدمتونه ترسره کوي؟

۳ـ ولې په دې وروستیو کې ډېر لږ ګرځندویان افغانستان ته راځي؟ ستاسو په نظر افغانستان باید د ګرځندویانو د پام را اړولو په خاطر څه وکړي؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیتونه:

د نوي لوست د متن او د ګرځندوی د نقشو په کتنې سره لاندینی جدول په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

| ګڼه | هغه طبیعي راښکون چې د ګرځندوی پاملرنه ځانته را اړوي | ګڼه | هغه کلتوري او مذهبي په زړه پورې والی چې د ګرځندوی د پاملرنې وړ دي |
|---|---|---|---|
| ۱ | د امیر بند | ۱ | د کابل موزیم |
| ۲ | | ۲ | |
| ۳ | | ۳ | |
| ۴ | | ۴ | |
| ۵ | | ۵ | |

## ۳، ۳ سوداګري او اهمیت یې:



۴۸- شکل

تاسي پوهیږئ چې زموږ خلك له ډېر پخوا په سوداګرۍ بوخت وو؟

سوداګري په حقیقت کې د شیانو او خدماتو تبادله کول دي. چې د پیرودونکي او پلورونکي تر منځ د پولي کریدیت له مخې له یوه څخه بل ته سپارل کیږي .کله چې تولید شوي اضافي اجناس او خدمات د تبادلې لپاره وړاندې شي، سوداګري ورته ویل کیږي.

د سوداګرۍ اصلي بڼه د مالونو سیده راکړه ورکړه ده چې یو له بل سره تبادله کیږي، خو د نن ورځې پرمختللې سوداګري د پیسو په وړاندې ترسره کیږي.

په ډېرو پخوا وختونو کې انسانانو په خپلو سیمو کې د اضافي شیانو په تبادله لاس پوري کړی و، وروسته بیا سوداګري شاوخوا سیمو او وروسته لیرې سیموته پراخه شوه.

اجناس او خدمات هغه وخت تبادله کیږي چې لاندېني شرایط چمتو شي:

۱ـ د اجناسو اضافي تولید ترسره شوی وي.

۲ـ په ټاکلې کسب او ځانګه کې تخصص رامنځ ته شوی وي.

۳ـ تولید د کار دویش پړاو ته رسیدلی وي (د کارویش ترسترګوشي)

٤ـ د دوو سیمو د تولیداتو د ډولونو ترمنځ توپیر ولیدل شي.

۵ـ سیاسي، کلتوري او ګمرکي خنډونه، نه وي.

٦ـ د لیرې‌دولو د دوو سیمو ترمنځ به وسایل او لارې او د اړیکو ټینګولو په خاطر ډېرې ښې لارې چارې چمتو وي.

۷ـ د دواړو سیمو وګړي یو د بل اجناسوته اړتیا او لیوالتیا ولري.

په عمومي توګه پورتني شرایط په ټولو ځایونو کې څه ناڅه د سوداګرۍ لپاره لاره اواروي، همدارنګه د بهرنۍ سوداګرۍ د رامنځ ته کیدو یو لوی لامل د طبیعي سرچینو ترمنځ توپیر او د پرمختیا په اړه له تخنیک څخه

د خلکو د کار اخيستو په استعداد کې د توپير تر سترګو کيدل دي، په بله وينا خلك ځکه په سوداګرۍ لاس پورې کوي چې غواړي خپل توليد کړي اجناس په لوړه بيه نورو سيمو کې وپلوري او يا هم هغه څه چې دوی يې خپله نه شي توليدولای او يايې په خپله سيمه کې د توليد شوې بيې پرتله په ارزانه له بلې سيمې څخه پيرودلای شي، ترلاسه کړي.

په افغانستان (لرغوني اريانا) کې له ډير پخوا څخه د هغه د جغرافيايي اهميت له مخې چې په دغه سيمه کې يې درلود او دا چې د هغه وخت د تمدن په څلور لاره کې پروت و، يعنې ختيځ ته يې د هند او چين تمدن او لويديځ ته يې د يونان او روم تمدن و، نو اضافي توليد دلته رامنځ ته کيده او ددې هېواد وګړو سوداګري او راکړه ورکړه کوله.

مخکې تر دې چې سمندري لارې وپيژندل شي، د سوداګريزو توکو او مالونو وړل راوړل ټول د وچې له لارې په کاروانونو ترسره کيدل. هغه مهال د مالونو تبادله او ليږدول د کاروانونو په واسطه د ختيځ او لويديځ ترمنځ يعنې د مديترانې د سمندرګي د ختيځو غاړو څخه تر چين پورې ترسره کيدل او افغانستان د يوې مهمې ترانزيټي سيمې په توګه هغه وخت د ډير اهميت وړ و.

وروسته بيا دغه لاره د وريښمو د لويې لارې په نوم ياده شوه، داځکه چې هغه وخت ډير ګرانبيه مالونه، لکه: وريښمين ټوکران، درمل او نور له همدې لارې څخه تېرېدل را تېريدل.

په اوسني وخت کې هم د افغانستان خلکوته سوداګري ځانګړی ارزښت لري. افغانستان کولای شي دګاونډيو ترمنځ د يوې څلورلارې په توګه له خپل ځانګړي جغرافيايي موقعيت څخه پوره ګټه واخلي او د خپل ملي عايد د زياتولو، دکار موندلو او اړيکو په برخه کې اغيزمن ګامونه اوچت کړي، دا ځکه چې افغانستان د خپلو لويو لارو څخه د زرګونو ټنو سوداګريزو مالونو، په تېره بيا د ترانزيټي اجناسو د ليږدولو وړتيا لري.

د يادونې وړ ده، چې افغانستان د بهرني سوداګرو بيلانس توازن نه لري، دوارداتو له کچې يې د صادراتو کچه څو واري زياته ده، چې ډېر لږ کورني توليدات له کمزورې اقتصاد نه څرګندونه کوي، ددې ټکي عمده عامل څو کلنه کورنۍ جګړه ده. د افغانستان د صادراتو وارداتو،د کورنۍ او بهرنۍ سوداګرۍ د کچې په باب به راتلونکو لوستونوکې معلومات تر لاسته کړئ.

## په ټولګي کې فعاليتونه

دوه دوه زده کوونکي دې لومړۍ د لوست متن او انځورونه په پوره ځيرتيا ولولي او د لوست پر مهموټکو دې په خپل منځ کې خبرې اترې وکړي، وروسته دې خپل نظرونه د سوداګرۍ او د هغې د اهميت په باب ټولګيوالو ته وړاندې کړي.

## پوښتنې:

١- ولې خلك سوداګرۍ ته مخه کوي؟

٢- زموږ په اقتصاد کې سوداګرۍ څه رول او اهميت لري؟ خپل معلومات په دوو بيلګو کې وړاندې کړئ.

٣- افغانستان په سيمه کې له څه ډول ترانزيټي موقعيت څخه برخمن دی؟

## له ټولګي څخه بهر فعاليت:

يو کتاب، مجله او يا ورځپانه چې د افغانستان د سوداګرۍ په باب معلومات ولري ولولئ، په راتلونکي ساعت کې هغه ښوونکي ته تشريح کړئ، د مهمو ټکو پر اړوند يې خبرې اترې وکړئ.

## الف ـ کورنۍ سوداګري:




۴۹- شکل

په افغانستان کې کومو لاملونو (عواملو) د سوداګرۍ په پرمختيا او وروسته پاتيوالي اغېزه درلوده او لري يې؟

لکه چې په تېر لوست کې وويل شول، د افغانستان خلك له ډېر پخوا راهيسې په سوداګرۍ بوخت وو. نن ورځ د افغانستان دننه سوداګري ښه پراخه ده چې علت يې د نفوسو ډېروالی، د ژوند د کچې نسبي لوړېدل او خوراکي توکو، صنعتي او خدماتي اجناسو او وسايلو ته د خلکو ورځ په ورځ د اړتيا زياتوالی دی. افغانستان چې بېلا بېلې اقليمي سيمې لري، د بيلابيلو ونو ـ بوټو کرنې او توليد ته يې ښه لاره هواره کړې ده.

بزګران او څمکوال سربېره پردې چې خپلې اړتياوې پوره کوي. کرنيز محصولات بازار ته هم وړاندې کوي او پلوري يې. د بېلګې په توګه: وريجې په هغو سيمو کې چې توده هوا او پوره اوبه لري لکه په ختيځ کې ننګرهار، لغمان، کونړ او د هېواد په شمال لکه کندوز، بغلان او تخار کې ډېرې کرل کيږي،

چې طبعاً د هغو اضافي تولیدات د هېواد دننه هغونورو سیموته چې هلته وریجې نه کرل کیږي، لېږل او پلورل کیږي. ددې یوه بله بیلګه غالی دي چې زیاتره د هېواد په شمالي برخو کې تولیدیږي چې نه یوازې د هېواد دننه بازارونو کې پلورل کیږي، بلکې یو مهم صادراتي قلم هم دی. په دې توګه په ټول هېواد کې د داخلي او واردشوو محصولاتو خرڅلاو د سوداګرو په لاس برابریږي.

ځینې کرنیز محصولات وروسته تر پروسس او صنعتي کیدو څخه د هېواد دننه بازارونو کې پلورل کیږي.

د یادونې وړ ده چې په وروستیو څلوېښت کلنو جګړو کې د هېواد ټول اقتصادي، ټولنیز، اداري او سیاسي بنسټونه ویجاړ او سوداګرۍ ته هم زیات زیان واوښت او هم افغانان تر پخوا زیات وارداتي مالونو او اجناسوته اړ شول. له نیکه مرغه په دې وروستیو کې د یو شمېر مؤسسو د بیارغونې کار پیل شوی دی، یو شمېر یې خصوصي سکتور ته ورکړل شوي دي او بیایې په فعالیت باندې پیل کړی دی. همدارنګه د مواصلاتي کرښو او سړکونو بیارغاونه هم پیل شوې ده. سوداګریز نوی سیاست او قوانین رامنځ ته شوي چې دا ټول به د کورنۍ سوداګرۍ د پرمختګ لامل شي.

## ب ـ بهرنۍ سوداګري:

افغانستان د آسیا د لویې وچې په منځ کې د یوه ځانګړي موقعیت په لرلو سره له ډیر پخوا څخه د ترانزیتي او مهم سوداګریز مرکز په نوم پیژندل شوی دی او کاني او کرنیز ځانګړي تولیدات یې له ډیر پخوا څخه په نړیوالو بازارونو کې پلورل کیږي.

۵۰- شکل



د افغانستان بهرنۍ سوداګري پخوا په لاندې درېو حوزو کې وه:

- د بارترسوداګريزه حوزه: جنس د جنس په وړاندې تبادلې ته بارترويل کيږي، دغه ډول سوداګري د مالونو د بدلولو په توګه پخوا د افغانستان او يو شمېر سوسيالستي هېوادونو لکه پخواني شوروي اتحاد، پولنډ، چکوسلواکيا، چين، بلغاريا او نورو سره وه.
- ازاده حوزه: چې لوېديځې اروپا، د امريکې متحده ايالتونو او جاپان سره وه.
- د هند د نيمې وچې سره د سوداګرۍ حوزه: د هند د نيمې وچې سره د افغانستان سوداګري ډېره اوږده تاريخي ريښه لري، چې دوخت په تېرېدو سره يې پراختيا موندلې ده.

د پخواني شوروي اتحاد له ړنګېدو وروسته، په ختيځه اروپا کې د سياسي رژيمونو له منځه تلو او د افغانستان د بهرني، اقتصادي او سوداګريز نوي سياست له پيل کيدو وروسته، د هېواد د سوداګرۍ په سيستم کې بدلون راغی.

اوس د افغانستان دولت د سوداګريزو نوو قوانينو پر بنسټ، کورنيو او بهرنيو سوداګرو او پانګوالو ته د پانګې اچونې او د خصوصي بانکونو رامنځته کيدوته لاره هواره کړې ده او دګاونډيو او نورو پرمختللو هېوادونو سره سوداګري د پراختيا په حال کې ده.

د افغانستان مهم صادراتي توکي يو شمېر خوراکي او خام توکي لکه وچې او تازه مېوې، مالوچ، د څارويو محصولات لکه، وړۍ او وزغنې، پوستکي، قره قل او کولمې او يو شمېر صنعتي توکي، لکه: غالۍ او ټغرونه، لاسي صنايع اوګرانبيه ډبرې دي. د افغانستان د صادراتو پرتله د وارداتي مالونو حجم او ډولونه ډېر زيات دي، چې دا د افغانستان د اقتصاد کمزوري ښکاره کوي. هغه مالونه چې له بهر څخه افغانستان ته راځي، زياتره يې استهلاکي مالونه او نور دي لکه ترانسپورتي وسايط او ماشينونه، نفتي مواد او روغنيات، کيمياوي مواد خوراکي توکي لکه غنم، بوره، چای، غوړي او منسوجات لکه جامې، درمل او نور.



## د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په دوه کسیزو ډلو کې لاندې فعالیتونه ترسره او پایله دې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي:

ـ د لاسي صنایعو او بازارونو نقشه وګورئ لاندېنیو پوښتنوته ځواب ولیکئ.

- هغه سیمې چې په آبي، شنه او ژېړ رنګ ښودل شوی دی څه مفهوم لري؟
- د څلورو ښارونو نوم ولیکئ چې ۲۳۰۰ هټیو څخه زیات په کې فعالیت کوي.
- د صادراتو او توریستي سیمو د څو عمده مرکزونو نومونه ولیکئ.



## پوښتنې:

۱. کوم عوامل په افغانستان کې د سوداګرۍ د پرمختګ سبب ګرځي، توضیح یې کړئ.

۲. د افغانستان واردات کوم دي؟ ستاسو له نظره له هغو څخه کوم یې د هېواد دننه جوړولی شو؟

۳. د افغانستان صادرات کوم دي؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

دیو څو قلمه هغو جنسونو نومونه چې له بهر څخه واردېږي او تاسې په خپله ورڅخه کار اخیستی وي، ولیکئ او همدارنګه یې جوړوونکي هېوادونه معرفي کړئ.

## ج ـ د هېواد د وارداتو او صادراتو انډول (کچه)




په ۱۳۸۵ هـ.ل.کال کې له ځینو هېوادو سره د افغانستان سوداګري.

شکل وګورئ او ولیکئ چې له کوم هېواد څخه د افغانستان واردات ډېر زیات دي؟

لکه څرنګه چې په تېر لوست کې وویل شول د افغانستان صادرات د وارداتو پرتله ډېر لږ دي، خو هیله کېږي چې د هېواد دننه کورني تولیدات زیات شي او د صادراتي اقلامو ډول او شمېر هم زیات شي، د بیلګې په توګه په دوو وروستیو کلونو کې د هېواد د صادراتو ټوله بیه د نورو تېرو کلونو په پرتله زیاته شوې، خو بیاهم په هیڅ توګه له بهر څخه د وارداتو سره د پرتلې وړ نه دي، چې په لاندې جدول کې ښوول شوي دي:

( ۷ ) جدول: له ۱۳۸۱ څخه تر ۱۳۸٦ هـ.ل کال پورې د افغانستان د بهرنۍ سوداګرۍ بیلانس (ارقام په میلیون ډالرو)

| کال | واردات | صادرات | توپیر |
|---|---|---|---|
| ۱۳۸۱ | ۲۴۵۲ | ۱۰۰,۱ | ۲۳۵۱,۹ |
| ۱۳۸۲ | ۱۸۷۰ | ۱۴۴ | ۱۷۲۶ |
| ۱۳۸۳ | ۲۱۷۶ | ۳۰۶ | ۱۸۷۰ |
| ۱۳۸۴ | ۲۴۷۱ | ۳۸۴ | ۲۰۸۷ |
| ۱۳۸۵ | ۲۷۴۴ | ۴۱۶ | ۲۳۲۸ |
| ۱۳۸۶ | ۳۰۲۲ | ۴۵۴ | ۲۵۶۸ |

# داضافي معلوماتو جدول

## دافغانستان صادرات

| شماره | د جنس نوم | ۸٤ کال | | | ۸۵ کال | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | مقدار په زرو ټنو | ارزښت په میلیون ډالرو | واردوونکی هېوادونه | مقدار په زرو ټنو | ارزښت په ملیون ډالرو | واردوونکي هېوادونه |
| ۱ | مالوچ په ټن سره | ۰،۳۱ | ۰،٦ | پاکستان،عربستان او نور ټول هېوادونه | ۲،۷۸ | ۲،٦۳ | د هندوستان، پاکستان،ایران او نور هیوادونه |
| ۲ | وړۍ په ټن سره | ۲,٤۲ | ۵,۰۳ | په ګڼو ګټو کې شریک هېوادونه، چین، المان،پاکستان، ایران، عربستان ...او | ۱,۵٦ | ٤,٤۷ | مشترک المنافع هېوادونو لکه چین، المان، پاکستان،ایران،عربستان او نور هېوادونه |
| ۳ | پوستکي په ټوکه | ۳٦۱۷,۸۸ | ۲٤,۵۲ | المان،پاکستان،عربستان او نور هېوادونه | ۲۲۸۸,۲٤ | ۱٤,۱ | مشترک المنافع هېوادونه، چین، هندوستان او پاکستان |
| ٤ | دقره قل پوستکی په تخته سره | ۵۳٦,۸ | ٦,۲ | دنمارک او فنلند | ۱۰٤٤,٦۱ | ۹,۳٤ | المان،پاکستان او نور هېوادونه |
| ۵ | کولمې په حلقه سره | ۱۷٦,۲٦ | ۰,۱٦ | پاکستان او نور هېوادونه | ۱۰۱,۱۷ | ۰,٤ | پاکستان او نور هېوادونه |
| ٦ | غوړ لرونکی حبوبات په ټن سره | ۹,۳ | ٤,۸۵ | مشترک المنافع هېوادونه، هندوستان پاکستان، ایران،عربستان او نور هېوادونه | ۱۳,۸٦ | ۸,۰۸ | مشترک المنافع هېوادونه، پاکستان، ایران، عربستان او نور ټول هېوادونه |
| ۷ | طبي نباتات په ټن سره | ۷,۲۵ | ٤,٦۷ | دګډوګټو لرونکي هېوادونه هندوستان پاکستان، یران ،عربستان او نور هېوادونه | ۱٤,۱ | ۱۰,۳۳ | مشترک المنافع هېوادونه، هندوستان، پاکستان،ایران،عربستان او نور هېوادونه |
| ۸ | تازه مېوې په ټن سره | ٤۱,۸ | ۱۷,۲۳ | دګډوګټو لرونکي هېوادونه هندوستان پاکستان، یران ،عربستان او نور هېوادونه | ۷۰,۳۵ | ۳۹,۰۳ | مشترک المنافع هېوادونه هندوستان، پاکستان، ایران ،عربستان او نور هېوادونه |
| ۹ | وچې مېوې په ټن سره | ٤۳,٦۱ | ۸٦,۸۸ | دګډوګټو لرونکي هېوادونه هندوستان پاکستان، ایران ،عربستان او نور هېوادونه | ۱۱۱,۱٦ | ۱۲٦,۱۲ | مشترک المنافع المان، هندوستان، پاکستان او نور هېوادونه |
| ۱۰ | قالینې او ټغر په متر مربع سره | ۱۹۸۵,۸ | ۲۰٦,۹٤ | المان، پاکستان او نور هېوادونه | ۲۰۲٤,۳۷ | ۱۸٦,۵۳ | مشترک المنافع المان،هندوستان، پاکستان او نور هیدواونه |
| ۱۱ | نور ټول شیان | ۰ | ۲٦,٦٤ | دګډوګټو لرونکي هېوادونه هندوستان پاکستان، ایران ،عربستان او نور هېوادونه | | ۱۵,٤۳ | مشترک المنافع هېوادونه، هندوستان،پاکستان او نور هېوادونه |
| دټولو صادراتو مجموع په میلیون دالرو سره | | | ۳۷۳,۷۲ | | | ٤۱٦,٤٦ | |

# د اضافي معلوماتو جدول

| شماره | د جنس نوم | ۸٤ کال | | | ۸۵ کال | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | مقدار په زرو ټنو | ارزښت په ملینو ډالرو | واردوونکي هېوادونه | مقدار په زرو ټنو | ارزښت په ملینو ډالرو | واردوونکي هېوادونه |
| ۱ | مالوچ په ټن سره | ۱,۱ | ۱,۳٦ | هندوستان، پاکستان | ۰ | ۰ | هندوستان، پاکستان،ایران او نور هییوادونه |
| ۲ | وړی په ټن سره | ۵,۱۹ | ٦,۲ | د مشترکوګټو هېوادونه، چین، المان،پاکستان، ...ایران، عربستان او | ۰,۷۵ | ۳,٦٦ | پاکستان، هندوستان، عربستان، ایران او نورهېوادونه |
| ۳ | پوستکي په تخته | ۱٤۳۹,٦۷ | ۹,۲٤ | د مشترکوګټو لرونکي هېوادونه هندوستان پاکستان، ایران ،عربستان او نور هېوادونه | ۹۷۳ | ۱۲,٦۸ | دګډو او مشترکوګټو لرونکي هېوادونه پاکستان، چین او نور هېوادونه |
| ٤ | دقره قل پوستکی په تخته سره | ٦٦۱,٤٥ | ۸,٤٦ | المان او نور هېوادونه | ۷۵۸,۹ | ۸,۲ | د ګډو او مشترکو ګټو لرونکي هېوادونه فنلند، او دنمارک |
| ۵ | غوړ لرونکي حبوبات په ټن سره | ۱۹,۲۳ | ۱۱,٤٥ | د مشترکوګټو لرونکي هېوادونه هندوستان پاکستان، ایران ،عربستان او نور هېوادونه | ۸ | ۵,۹ | ایران، عربستان او نور ټول هېوادونه |
| ٦ | کولمې په حلقه | ۳۵۸ | ۰,٤۳ | پاکستان او نور هېوادونه | ۷۲,۱ | ۰,۱۵ | ټول هېوادونه |
| ۷ | طبي نباتات په ټن سره | ۲۲,۵۹ | ۲۰,۲۲ | د مشترکوګټو لرونکي هېوادونه هندوستان پاکستان، ایران ،عربستان او نور هېوادونه | ۲۲,۵٦ | ۱۹,۰۵ | چین،هندوستان، پاکستان، ایران، عربستان او نور ټول هېوادونه |
| ۸ | تازه مېوې په ټن سره | ۱۲۷,۸۳ | ٤۱,۳۸ | د مشترکوګټو لرونکي هېوادونه هندوستان پاکستان، ایران ،عربستان او نور هېوادونه | ٦۰,۷۷ | ۳۵,۷ | دګډواو مشترکو ګټو لرونکي هېوادونه هندوستان، ایران،عربستان، پاکستان او نور هېوادونه |
| ۹ | وچې مېوې په ټن سره | ۸٤,۹۱ | ۱۱۷,٤۸ | د مشترکوګټو لرونکي هېوادونه هندوستان پاکستان،ا یران ،عربستان او نور هېوادونه | ۱٤٤,۱۸ | ۱۷۰,۹۷ | د ګډو او مشترکو ګټو لرونکي هېوادونه هندوستان،پاکستان،ایران، عربستان او نور هېوادونه |
| ۱۰ | قالینې او ټغر په متر مربعې سره | ۸٤,۹۱ | ۲۱۱,۷٦ | د و مشترکوګټو لرونکي هېوادونه هندوستان پاکستان، ایران ،عربستان او نور هېوادونه | ۱۱۷۱,۸ | ۱۰۸,۷ | د ګډو او مشترکو ګټو لرونکي هېوادونه، هندوستان،پاکستان،چین او نور هېوادونه |
| ۱۱ | نور ټول شیان | | ۲٦,۰۷ | د مشترکوګټو لرونکي هېوادونه هندوستان پاکستان، ایران ،عربستان او نور هېوادونه | | ۵۵,۸٦ | د ګډو او مشترکو ګټو لرونکي هېوادونه پاکستان، ایران، عربستان، المان، هندوستان او نور ټول هېوادونه |
| په میلیونونو سره د ټولو صادراتو | | | ٤٥٤,۰۵ | | | ٤۱٦,٤٦ | |



### د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي، د متن، شکلونو او د لوست د جدولونو په کتنه دې لاندېنیو پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

۱. په دې وروستیو کلونو کې د افغانستان بهرنۍ سوداګري کومو هېوادونو سره زیاته شوې ده.

۲. په ۱۳۸٤ هـ ل کال کې کوم محصول له ۲۱۱ میلیونه ډالرو څخه زیات بهرته صادر شوی دی؟

۳. د افغانستان وچې اوتازه مېوې زیاتره د نړۍ کومو هېوادونو ته صادریږي؟

٤. په ۱۳۸۵ هـ ل کال کې کوم هېواد ته په سلوکې ۲۲.۸ صادرات وو؟



### پوښتنې:

۱. په تېرو کلونو کې د افغانستان د بهرنۍ سوداګرۍ بیلانس مثبت و که منفي؟ د هغې لامل (علت) څه و؟

۲. افغانستان په کوم کال کې ډیر زیات صادرات او واردات لرل، ولې؟ د هغې لامل څه و؟



### له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د خپلې سیمې له یوه سوداګر، مالدار یا هټیوال سره مرکه وکړئ له هغه څخه پوښتنه وکړئ چې خپله سوداګري په څه ډول پرمخ بیایي، مالونه او اجناس په څه ډول چمتو کوي بیا هغه څرنګه پلوري او کومې ستونزې لري. همدارنګه ستاسو په نظر به دغه ستونزې په څه ډول حل شي، را ټول شوي معلومات مو په یوه پاڼه کې ترتیب، تنظیم او ولیکئ او هغه خپل ښوونکي او ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

## ۳، ۴ بانک




۵۲- شکل

بانک څه شی دی او کوم فعالیتونه ترسره کوي؟

بانک یوه پخوانۍ کلمه ده چې د الماني ژبې د (Bank) له اصطلاح څخه اخیستل شوې ده او د یو ډول شرکت معنا ورکوي، خو ځینې پوهان وایي چې بانک د ایټالوي ژبې له Banco څخه اخیستل شوې ده چې د څوکۍ معنا ورکوي. Banco هغه کوچنۍ څوکۍ وه چې پخواني صرافان به په هغې باندې کیناستل او صرافي کارونه به یې پرمخ وړل.

د هغه وخت د صرافي موسسې یا بانکونو په هماغه پخواني نوم او لاړو چارو باندې ورو ورو پرمختګ وکړ، ښه والی یې وموند او د نن ورځې د ټولو اعتباري او پولي معاملاتوا وفعالیتونو مرکز وګرځېد.

بانک بیلابیل تعریفونه لري. د افغانستان د بانکي چارو قانون، بانک داسې تعریف کړی دی:

بانک هغه اداره یا حقوقي شخصیت دی چې له عامو خلکواو دولتي ارګانو نو څخه پیسې اخلي، ساتي یې، په دوران کې یې اچوي. او همدارنګه بیرته پورونه ورکوي. داسې هم ویلای شو چې بانک هغه اقتصادي واحد دی چې په پرله پسې توګه اعتبار ترلاسه کوي او بېرته یې هم ورکوي.

همدارنګه د هېوادونو بانکي او سوداګریز قوانین د بانکونو ځینې فعالیتونو ته اجازه ورکوي، خو ځینې نور غیر مجاز بولي، یعنې د حکومتونو له لوري د بانکونو ځینو فعالیتونو ته پولې ټاکل شوي دي، نو ویلای شو چې:

بانک هغه مؤسسه ده چې د یوه سهامي شرکت په توگه رامنځ ته او د هر هېواد د بانکي او سوداگریز قانون له مخې خپلې چارې پرمخ بیایي.

نو ویلای شو چې هغه مؤسسه بانک بلل کیږي چې پولي، اعتباري او مالي چارې پرمخ بیایي.

بانکونه د هغوی د عملیاتو او د کارونو د ډول له مخې بیلابیل دي، خو د ډیرو پوهانو په وینا بانک په عمومي توگه درې ډولونه لري:

- مرکزي بانکونه
- سوداگریز بانکونه
- تخصصي بانکونه

- **مرکزي بانکونه**

په ټولو هېوادونو کې مرکزي بانک د بانکي فعالیتونو اصلي سازمان ورکوونکی او خوځوونکی دی چې زیاتره د دولتي بانک په بڼه کارکوي او په انتفاعي توگه خپلې چارې پرمخ بیایي. مرکزي بانک د بانکونو د مور په نوم هم یادیږي، همدارنگه ځینې خلک هغه ته د بانکونو بانک هم وایي، دا ځکه چې ددغه ډول بانک یوه دنده د نورو بانکونو څارنه او کنترول کول دي.



۵۳- شکل

په افغانستان کې (د افغانستان بانک) مرکزي بانک دی چې د ۱۳۱۸ هـ ل. کال. د ورې په میاشت کې یې د ۱۲۰ میلیونو افغانیو په ارزښت په کار پیل وکړ.

په عمومي توګه مرکزي بانکونه لاندینی دندې لري:

- د بانک نوټونو خپرول
- د اسعارو کنترول
- د نورو بانکونو څارنه
- د بهرنیو اسعارو په وړاندې د داخلي یا ملي پیسو د ارزښت ثابت ساتل.
- په غوره توګه د استخدام لوري ته د اقتصاد لارښوونه او داسې نورې دندې.

- **سوداګریز بانکونه**:

په زیاترو هېوادو کې سوداګریز بانکونه هغو بانکونو ته ویل کیږي چې د لنډې مودې عملیات او د امانتونو دندې پرمخ بیایي. په لومړیو وختونوکې چې کله سوداګریزو بانکونو نوی په کار پیل وکړ، ټولې هغه دندې چې نور بانکونه یې ترسره کوي، سوداګریزو بانکونو هم ترسره کولې یعنې دوی په صنعت، کرنه، د ودانیو په جوړولو او نورو چاروکې د پانګې اچونې دندې هم پرمخ بیولې، خو وروسته له دې



٥٤- شکل

چې ځانګړي بانکونه لکه، کرنيز بانک، رهني بانک او نور جوړ شول، د سوداګريزو بانکونو فعاليت محدود شو.

• **تخصصي بانکونه**:

دغه بانکونه لکه د سوداګريزو بانکونو په شان عادي فعاليتونه او چارې پرمخ نه بيايي، بلکې په بشپړه توګه په ځانګړو برخو لکه په صنعت، کرنه او نورو کې فعاليت کوي او په همدغو برخو کې دندې پرمخ بيايي چې ښې بيلګې يې صنعتي بانک، کرنيز بانک او رهني بانکونه دي.

**د ټولګي دننه فعاليت**:

زده کوونکي دې په څو ډلو وويشل شي او د نوي لوست د متن او تصويرونو په کتنې سره دې لاندينۍ دندې ترسره کړي اود خپلو دندو پايله دې د ډلې استازي له خوا ټولګيوالوته وړاندې کړي:

ـ لومړۍ ډله دې د بانک د کلمې، تعريفونو او دندو په هکله خبرې وکړي.

ـ دويمه ډله دې د مرکزي بانک دندې ووايي.

ـ دريمه ډله دې د سوداګريزو او ځانګړو تخصصي بانکونو دندې اوبيلګې توضيح کړي.

**پوښتنې**:

١. د افغانستان بانک څه ډول بانک دی، پر کوم کال تاسيس او کومې دندې ترسره کوي؟

٢. په عمومي توګه بانکونه څو ډوله دي؟ د هغو نومونه له مثال سره ووایاست.

٣. د مرکزي، سوداګريزو او شخصي بانکونو ترمنځ څه ورته والی او کوم توپيرونه شته؟ توضيح يې کړئ.

**له ټولګي څخه بهر فعاليت**:

که چيرې مو مور او پلار يا کوم خپلوان په بانک کې حساب ولري، هغوی سره خبرې وکړئ چې له څه وخت راهيسې، کوم بانک سره په څه ډول معامله لري، څه ګټه ترلاسه کوي او له اړوند بانک سره د خپلو اړيکو له امله خوښ دي که نه؟ خپل معلومات په بل ساعت کې د ټولګي ملګروته ووایاست.

# د بانک د چارو د پرمخ بیولو څرنګوالی



۵۵- شکل

لکه څنګه چې تاسې په تېر لوست کې بانک او زموږ په هېواد کې دهغه دندې وپېژندلې. په دغه لوست کې به د بانکي چارو د څرنګوالي او انډول په هکله معلومات ترلاسه کړئ.

په افغانستان کې بانکي چارې نظر نورو هېوادونو ته ډېرې نوې دي، د بېلګې په توګه له ۱۳۰۹هـ ل. کال څخه مخکې د بانکونو ټولې چارې صرافانو پرمخ بیولې، د لومړي ځل لپاره په ۱۳۰۹ هـ ل. کال کې (د افغانستان سهامي شرکت) د یوه سهامي شرکت په توګه جوړشو چې په ۱۳۱۲ هـ ل .کال کې د اته میلیونو افغانیو په لومړنۍ پانګه د هغه وخت د اړتیا له مخې د (ملي بانک) په نوم د یوه بانک په بڼه واوښت او د افغانستان بانک له جوړیدو مخکې یې د مرکزي بانک دندې تر سره کولې. وروسته بیا په ۱۳۱۸ هـ ل. کال کې د هغه وخت د اړتیا سره سم (د افغانستان بانک) د ۱۲۰ میلیونو افغانیو په لومړنۍ پانګې سره جوړ شو چې په تېر لوست کې مو د هغه د دندو په هکله معلومات حاصل کړل. وروسته بیا یو شمېر نور سوداګریز او دولتي تخصصي بانکونه یو په بل پسې جوړ شول لکه رهني او تعمیراتي بانک، کرنیز بانک، پښتنې تجارتي بانک، د صنعتي پراختیا بانک، صادراتي بانک او نور.

نوموړو بانکونو هر یوه په خپل وار د امنیت په شرایطو کې د پام وړ چارې پرمخ بیولې او د سوداګرۍ،

صنعت، کرنې او د صادراتو د پراختیا په برخو کې یې لوی خدمتونه کړي او د هغو جوړیدل په هماغه وخت کې پرته له شکه د اقتصادي پرمختیا او سوکالۍ په لور د تګ په برخه کې ډیر اغیزمن کارو، خو د کورنیو جګړو په ترڅ کې چې ددې هېواد ټوله شتمني او زیر بنا یې له منځه ولاړه، همداسې هم دغه بانکونه د سقوط حالت ته نږدې شول، خو په دې وروستیو کې د هېواد په بانکي چاروکې یو شمېر د پام وړ پرمختیاوې ترسترګو کیږي.

لکه چې په تېر لوست کې ولوستل شول، د بانکونو چارې له یو بل سره توپیر لري، او د هغوی د دندو له مخې سرهوېشل کیږي د بیلګې په توګه:

ـ (د افغانستان بانک) لکه د نورو هېوادونو په شان د هېواد مرکزي بانک دی چې ټاکلې دندې، لکه: د پیسو خپرول، د اسعارو کنترول، د نورو بانکونو څارنه، د اسعارو په وړاندې د ملي پیسو د بیې د ثبات ساتل او د مطلوب هدف خواته د اقتصاد رهنمایي په غاړه لري.

ـ سوداګریز بانکونه په ډیرو هېوادونوکې ځانګړي فعالیتونه لري چې په دې لړکې په افغانستان کې هم د لنډې مودې عملیات او د میعادي امانتونو دنده ترسره کوي.

ـ خصوصي بانکونه چې اوس یې زموږ په هېواد کې یو شمېر لغوه شوي یا فعالیت نه لري عادي چارې پرمخ نه بیایي بلکې په بشپړ ډول په تخصصي ډګرونو لکه صنعت، کرنه، او نورو کې په کار بوخت وو. په دې وروستیو کې په افغانستان کې د خصوصي بانکونو د بانکي چارو نوی قانون نافذ شوی دی او یو شمېر غیر دولتي بانکونه یا خصوصي بانکونه جوړشوي دي چې معمولاً د سوداګرۍ په برخه کې فعالیت کوي. په افغانستان کې د خصوصي بانکونو مهم فعالیتونه دادي:

ـ د اماناتو منل

ـ د جاري حسابونو پرانیستل

ـ د کریدت یا پورونو ورکړه

ـ پولي انتقالات

ـ د قیمتي اجناسو او ګاڼو ساتل

ـ د اسعاري معاملو ترسره کول

ـ دولت ته د بانکي خدمتونو ترسره کول

## اضافي معلومات

په افغانستان کې د بانکونو لېست

| ګڼه | بانک | د بانک ډول | د جوړېدو نېټه | حالت |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | افغان ملي بانک | دولتي | ۱۳۱۲ هـ ش | فعال |
| ۲ | د افغانستان بانک | مرکزي | ۱۳۱۸ هـ ش | فعال |
| ۳ | رهني او تعميراتي بانک | دولتي | ۱۳۲۶ هـ ش | لغو شوی دی |
| ۴ | د کرنې د پراختيا بانک | دولتي | ۱۳۳۳ هـ ش | // |
| ۵ | پښتني بانک | دولتي | ۱۳۳۳ هـ ش | فعال |
| ۶ | د صنعتي پرمختيا بانک | دولتي | ۱۳۳۷ هـ ش | لغو |
| ۷ | د صادراتو د پراختيا بانک | دولتي | ۱۳۵۵ هـ | لغو شوی دی |
| ۸ | ستندرد چارتر بانک | (د بهرنيو بانکونو (څانګه | ۱۳۸۲هـ ش | فعال |
| ۹ | د پاکستان نشنل بانک | (د بهرنيو بانکونو (څانګه | ۱۳۸۲هـ ش | فعال |
| ۱۰ | حبيب بانک لمټډ | (د بهرنيو بانکونو (څانګه | ۱۳۸۲هـ ش | فعال |
| ۱۱ | پنجاب نشنل بانک | (د بهرنيو بانکونو څانګه) | ۱۳۸۲هـ ش | فعال |
| ۱۲ | بانک الفلاح لمټډ | (د بهرنيو بانکونو څانګه) | ۱۳۸۲هـ ش | فعال |
| ۱۳ | کابل بانک | نوی جوړ شوی | ۱۳۸۳هـ ش | فعال |
| ۱۴ | افغانستان نړيوال بانک | نوی جوړ شوی | ۱۳۸۳هـ ش | فعال |
| ۱۵ | ارين بانک | نوی جوړ شوی | ۱۳۸۳هـ ش | فعال |
| ۱۶ | د کوچنيو پورونو د تمويل لومړنی بانک يا فيرست مايکرو فايننس بانک | نوی جوړ شوی | ۱۳۸۲هـ ش | فعال |
| ۱۷ | عزيزي بانک | نوی جوړ شوی | ۱۳۸۵هـ ش | فعال |
| ۱۸ | برک بانک | نوی جوړ شوی | ۱۳۸۵هـ ش | فعال |
| ۱۹ | د افغانستان پرمختيايي بانک | نوی جوړ شوی | ۱۳۸۵هـ ش | فعال |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۲۰ | افغان یونایټډ بانک | نوی جوړ شوی | ۱۳۸۶هـ ش | فعال |
| ۲۱ | میوند بانک | نوی جوړ شوی | ۱۳۸۷هـ ش | فعال |
| ۲۲ | برکت بانک ان فارمیشن | نوی جوړ شوی | ۱۳۸۶هـ ش | فعال |

| ۱۹۸۰ | ۱۹۸۱ | ۱۹۸۲ | ۱۹۸۳ | ۱۹۸۴ | ۱۹۸۵ | ۱۹۸۶ | ۱۹۸۷ | ۱۹۸۸ | ۱۹۸۹ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۳۹/۷۷۹ | ۴۵/۶۶۵ | ۵۲/۹۷۳ | ۵۵/۶۹۱ | ۶۸/۷۰۷ | ۷۴/۴۲۴ | ۸۲/۹۵۶ | ۱۲۸/۰۸۹ | ۱۷۴/۸۶۷ | ۱۸/۸۶۱ |

په ۲۰۰۵ زیږدیز کال کې د افغانستان د بهرنیو پیسو زېرمه ۱.۳ میلیارده ډالره وه.

### د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو وویشل شي او ددغه لوست او پخواني لوست د متن په لوستلو سره دې لاندینی دندې ترسره کړي او د خپل فعالیت پایله دې په ټولګي کې وړاندې کړي:

۱. د افغانستان بانک دندې او دکارخرنګوالی مشخص او ولیکئ.

۲. په هېواد کې د تخصصي بانکونو دندې او دکارخرنګوالی مشخص او ولیکئ.

۳. د خصوصي او سوداګریزو بانکونودکار خرنګوالی او دندې ځرګندې او ویې لیکئ.

### پوښتنې:

۱. د افغانستان بانک کومې مهمې دندې ترسره کوي؟ نومونه یې واخلئ.

۲. خصوصي بانکونه کومې دندې پرمخ بیایي؟ توضیح یې کړئ.

۳. زموږ په هېواد کې کومو تخصصي بانکونو فعالیت کاوه، کوم یې اوس فعال دي او کوم یې اوس غیر فعال دي؟ نومونه یې واخلئ.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت:

اتهویشتم او نههویشتم لوستونه ولولئ او د هغو د مهمو ټکو په هکله په راتلونکي ساعت کې معلومات ورکړئ.

# ۳،۵ د صنايعو او سوداګرۍ د حالت څېړل




۵۶-شکل: د یوې صنعتي د ستګاه انځور.

د هېواد صنايع او سوداګري په کوم حالت کې ده؟

تاسې چې په دې څپرکي کې د هېواد له صنعتي او سوداګريزو چاروسره اشنا شوئ. ښه به دا وي چې په عمومي توګه په افغانستان کې د صنايعو او سوداګرۍ حالت وڅېړو، ستونزې او خنډونه يې وپيژنو او هغه اسانتياوې او لارې ـ چارې چې د صنايعو او سوداګرۍ د ودې په برخه کې شته رابرسيره او شننه يې وکړو.

که چيرې د هېواد هغه طبيعي او ټولنيز شرايط او لاملونه چې زموږ د هېواد اقتصادي ودې او پرمختګ ته ضروري دي، وکتل شي، دې پايلې ته رسيږو چې افغانستان د خپلې ځمکې د جوړښت او بڼې، کاني زيرمو يا ترځمکې لاندې سرچينو، د ځمکې د مخ سرچينو يعنې د نباتي او څارويو د منابعو، په سيندونو کې د روانو اوبو بهير، د هوا د برابروالي اونورو طبيعي ځانګړتياوو له مخې او د پوره بشري ځواک د شتوالي له مخې د نن ورځې د صنايعو د پرمختګ او پراختيا لپاره ډير غوره امکانات لري، خو هغه ناوړه سياسي، اقتصادي، او ټولنيز شرايط چې د ۱۸ ـ ۱۹ او ۲۰ مې پيړۍ تر نيمايي

پورې یو شمېر هېوادونکې، په تېره بیا په آسیا، افریقا او لاتینه امریکا کې او له هغې ډلې څخه په افغانستان باندې واکمن وو، په دغو هېوادو کې د اقتصادي پرمختیا خنډ شوي وو.
په تېرو وختونو کې د زبرځواکونو ترمنځ سیالي په افغانستان کې د یوې اوږدې مودې په ترڅ کې د پانګې اچونې په مخه کې خنډ ګرځېدلې وه، همدارنګه له دې امله چې زموږ هېواد په وچه کې ایسارو، دې ډول جغرافیایي موقعیت هم د صنعت او سوداګرۍ د پرمختیا په لار کې خنډ پیښ کړی دی. ددې ترڅنګ کورنیو جګړو نه یوازې داچې ددغه هېواد بشري ځواک ته زیان واړاوه، په افغانستان کې د میلیونونو وګړو د تېښتې کېدو، معیوب کېدو او مهاجرکېدو لامل شو، بلکې روزنیز مرکزونه هم وتړل شول او زموږ خلک له ښوونې او روزنې څخه پاتې شول، پوره اندازه فني او مسلکي پرسونل ونه روزل شول او زیات شمېر صنعتي تأسیسات او فابریکې په ټپه ودریدې، همدارنګه لارو او مواصلاتي کرښو ته چې د صنعت او سوداګرۍ په پرمختیا کې ډېر اهمیت لري لوی زیان واوښت له همدې امله ده چې په افغانستان کې صنعت او سوداګرۍ ښه حالت نه لري او تقریباً په سلوکې لس فعال اقتصادي نفوس د صنعت په سکتور کې او څه ناڅه په سلوکې لس په خدماتو او په ځانګړي ډول په سوداګرۍ کې بوخت دي.
زموږ د هېواد واردات د صادراتو په پرتله څو څو ځله زیات دي او یو بشپړ منفي بیلانس چې د بیوزله اقتصاد نښه ده، ښکاره کوي. تاسې د افغانستان د سوداګرۍ د بیلانس په جدول کې ولیدل چې افغانستان په ۱۳۸۶هـ ل. کال کې د ۳۰۲۲ میلیونو ډالرو په ارزښت واردات درلودل، خو صادرات یې یوازې ٤٥٤ میلیونه ډالره وو، چې ۲٥٦۸ میلیونه ډالره توپیر یا منفي بیلانس څرګندوي. افغانستان چې ډېرې غوره دګرځندوی سیمې لري، دګرځندوی لپاره هم پوره اسانتیاوې نه دي برابرې شوي او د نا امنۍ له کبله د بهرنیو ګرځندویانو راتګ ډېر لږ دی. په هر حال، که چیرې زموږ په هېواد کې یو سالم اقتصادي سیاست و کارول شي، د هېواد له ترانزیټي ارزښت او کورنیو منابعو څخه سم کار واخیستل شي، د لویو لارو او مواصلاتي کرښو حالت به ښه شي، د ملي صنایعو او ملي سوداګرو ملاتړ به وشي، نو په هېواد کې به د صنعت او سوداګرۍ د پرمختګ لپاره ډېر غوره امکان برابر شي. د یادونې وړ ده چې په دې څو وروستیو کلونو کې په ځینو برخو کې د نړیوالې ټولنې په مرسته د بیا رغاونې چارې ترسره شوي دي، سړکونه بیا رغول شوي، په هېواد کې

بانکي چارې ببرته فعالې شوي او پراختيا يې موندلې ده او که چيرې په راتلونکو کلونو کې په هېواد کې د برېښنا د توليد لوی بندونه جوړ شي، د هېواد د اوبو سرچينو څخه په پوره پيمانه استفاده وشي، د هېواد لاسي صنايع وهڅول شي او د لومړنيو خامو توکو د صنعتي کيدو لپاره فابريکې جوړې شي، غوره سوداګريزې اسانتياوې چمتو شي، نو د هېواد خلك به د صنعت او خدماتو په برخو کې لازيات بوخت شي او په هېوادکې به اقتصادي ودې ته ډېره ښه لاره هواره شي.




د افغانستان د صادروونکو ميوو انځور.



### د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې د ښاغلي ښوونکي په لارښوونه په ډلو وویشل شي، لومړۍ ډله دې په هېواد کې د صنعت د پرمختګ او نه پرمختګ لاملونه وشمېري، دویمه ډله دې په هېواد کې د سوداګرۍ د پرمختیا او نه پرمختیا په هکله خبرې وکړي او د خپل بحث پایله دې نورو ته ووایي.



### پوښتنې:

په خپلو کتابچو کې د سم ځواب له توري څخه کړۍ تاوکړئ.

۱ـ هغه لویه برخه یا سکتور چې زموږ د هېواد ډیر وګړي په کې بوخت دي کوم یو دی؟

الف. صنعت ب. کرنه ج. خدمات د. یوهم نه

۲ـ هغه طبیعي عوامل چې په هېواد کې د صنعت د پرمختیا لپاره لاره اواروي کوم یو دي؟

الف. کاني سرچینې ب. د نباتاتو او خارویو تولیدات ج. غالی، ټغر د. درې واړه سم دي.

۳ـ د افغانستان ډیر مهم صادراتي محصولات کوم دي؟

الف. ګرانبیه ډبرې ب. د نباتاتو او خارویو تولیدات ج. اقلیم د. درې واړه سم دي

٤ـ د افغانستان زیات واردات دا جوتوي چې:

الف. افغانستان ډیرې پیسې لري ب. په افغانستان کې توکي او محصولات لږ تولیدیږي

ج. افغانستان کمزوری اقتصاد لري د. ب او ج ځوابونه سم دي.



### کورنۍ دنده

دریم څپرکی مطالعه کړئ د افغانستان د سوادګرۍ اوصنایعو په هکله په شفاهي توګه لنډ معلومات ورکړئ

# اوبه او کرنه

## په دې څپرکي کې لولو:

• په نړۍ کې اوبه او په هغو باندې پانګه اچونه

ـ د اوبو لګولو لويې پروژې

ـ د اوبو چاڼول (تصفيه)

• کرنه او د هغې نوې لارې چارې

• د نړۍ پر مختلفو هېوادونو کې د کرنيزو توليداتو د بېلا بېلو ډولونو اندازه

ـ په نړۍ کې د غنمو توليدات

ـ په نړۍ کې د وريجو توليدات

ـ په نړۍ کې د جوارو توليدات

ـ په نړۍ کې د کچالو توليدات

ـ په نړۍ کې د غوښې توليدات

## د څپرکي عمومي موخې:

**زده کوونکي به ددغه څپرکي په لوستلو سره لاندېنیو پوهنیزو موخوته ورسیږي:**

- په نړۍ کې به د اوبو مهمې پروژې وپیژني.
- د اوبو په برخه کې به د پرمختللو هېوادونو د پانګې اچونې په هکله پوهه ترلاسه کړي.
- د اوبو د چاڼولو له پرمختللو لارو چارو سره به آشنا شي.
- د کرنې په پرمختللو لارو چارو (لکه په نل لیکو(پایپ لینونو) خړوبولو، سیفون او نورو) باندې به پوه شي.
- په پرمختللو هېوادونو کې به د کرنیزو محصولاتو د تولید په اندازه و پوهیږي.

**زده کوونکي به ددغه څپرکي په لوستلو سره لاندېنیو مهارتي هدفونوته ورسیږي:**

- د نړۍ د اوبو لویې پروژې به معرفي کړای شي.
- د اوبو په برخه کې به د پانګې اچونې اهمیت تشریح کړای شي.
- د اوبو د چاڼ پرمختللې لارې ـ چارې به توضیح کړای شي.
- په خپلو باغچو کې به د کرنې له پرمختللو لارو چارو څخه کار واخېستلای شي.

## ۴،۱ په نړۍ کې اوبه او په هغو باندې پانګه اچونه




۵۸- شکل دنړۍ په بیلابیلو هېوادو نوکې د څښلو د اوبو کیفیت.

آیا د ځمکې پرمخ پوره اندازه اوبه شته٤

اوبه زموږ په ژوند کې ځانګړې ارزښت لري. پرته له اوبوڅخه ونې، بوټي، څاروي او انسانان ژوندي نه شي پاتې کیدای. اوبه په ټوله ځمکه باندې یوشان او برابرېوېشل شوي نه دي. د ځمکې د مخ په سلوکې ۷۰ برخې اوبو نیولې چې له هغو اوبو څخه په سلوکې ۹۷ برخې یې په سمندرونو او سمندرګیو کې دي چې مالګینې دي یعني څښلو، کرنې او صنعت ته برابرې نه دي، نو د چاڼولو غوښتنه کوي، پاتې په سلوکې درې برخې اوبه خوږې او تازه اوبه دي چې له هغو څخه یوازې په سلوکې یوه برخه یې سیندونو، د ځمکې لاندې اوبه او په ځینو ډنډونه (جهیلونه) دي چې انسان په هغو باندې لاسبری لري. د خوږو اوبو پاتې په سلوکې دوه برخې د غرونو او قطبونو دایمي کنګلونه او واورې دي، چې د ګټې اخېستو وړ نه دي.

دلته به د ټولې نړۍ په کچه د اوبو په هکله ځینې ارقام او حقایق بیان کړو:

- اوبه د ژوند تر ټولو لومړنۍ اړتیا ده، پرته له اوبو څخه انسان په دریو ورځوکې مري.
- په اوسني وخت کې د نړۍ له شپږو میلیاردو وګړو څخه له یو میلیارد تنو څخه زیات خلك خوږې او پاکې اوبه نه لري.
- په پرمختیایي هېوادوکې په اتیا سلنه ناروغۍ د ککړو او نا پاکو اوبو له امله دي.
- په سلوکې اویا برخې اوبه په کرنه کې لګول کیږي.
- د کرنې په سلوکې ۳٦ محصولات له خړوبولو څخه وروسته ترلاسه کیدای شي.
- دا اټکل له مخې په ۲۰۵۰ م کال کې به د نړۍ نفوس ۹.۳ میلیارده تنه وي چې له هغو څخه ۲.۳ میلیارده به یې د څښلو د اوبو له کمښت سره مخامخ وي.
- تېرو پنځوکلونو کې له ۵۰۷ څخه زیاتې شخړې او جګړې د اوبو پرسر پیښې شوي دي، چې په هغو کې یې ۲۱ وسلوالې نښتې وې.

لکه چې مخکې وویل شول، انسان د خپلو کارونو د پرمخ بیولو لپاره هغو خوږو اوبوته اړتیا لري چې مالګه یې ډېره لږه وي. د لویو سمندرونو او سمندرګیو اوبه مالګینې دي چې له هغو څخه د ګټو اخېستو په خاطر باید هغه پاکې اوچاڼ شي، د اوبو د چاڼولو په خاطر باید د خوږو اوبو د تأسیساتو په جوړولو پانګه ولګول شي.

یوزیات شمېر پرمختیایي هېوادونه، په تېره بیا په آسیا او افریقاکې د څښلو د پاکو اوبو له کمښت سره مخامخ دي. د منځنۍ ختیځ هېوادونه، د اوبو د اړتیا د پوره کولو لپاره ډېرې زیاتې پیسې لګوي. د نړۍ په یو شمېر زیات نفوس لرونکو سیمو او لویو ښارونو کې د سیندونو طبیعي سرچینې او څاګانې کافي نه بلل کیږي، د بیلګې په توګه د مکسیکو په ښارکې اوبه د ۱۲۵ کیلومترو په واټن په نل لیکه کې لیږدول کیږي او د ۱۲۰۰ مترو لوړو غرونو څخه هاخوا اړول کیږي او د پمپ په واسطه اړو سیمو ته رسول کیږي.



۵۹- شکل

په عمومي توګه ویل کیدای شي هغه څه چې د پاکو او مناسبو اوبو د چمتو کولو لپاره باید ترسره شي، په لاندېنیو برخو کې پانګې اچونې ته اړتیا لري:

- د اوبو د هغو سرچینو پیژندل او رابرسیره کول چې د خلکو د څښاك اونورو اړتیاوو لپاره په کار دي.
- د ځمکې د مخ د اوبو راټولول او د ځمکې لاندې اوبو څخه ګټه اخېستل.
- د احتمالي ککړوالي د له منځه وړلو په موخه د اوبو چاڼول.
- له چاڼځای څخه د لګښت ترسیمو پورې د اوبو لیږدول.
- د اوبو د لیږد د نل لیکو، کانالونو او تاسیساتو څارنه.

په دې توګه د اوبو د چمتو کولو، چاڼول او رسول د ډېر لګښت غوښتنه کوي او باید له هغو څخه د کار اخېستنې پرمهال ډېر پام وشي.

## د ټولګي دننه فعالیت

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو وویشل شي، لاندیني فعالیتونه دې ترسره کړي او د خپل کار پایله دې په ټولګي کې وړاندې کړي:

- د لوست نقشې ته وګورئ او څرګنده کړئ چې د ځمکې د مخ کومې برخې په سلوکې له ۹۵ او کومې برخې په سلوکې ۷۵ څخه لږې د څښلو او پاکې اوبه لري.
- د اوبو د سرچینو اوله هغو څخه د کار اخېستلو شکل مطالعه او واضحه کړئ چې کوم هېوادونه هره ورځ تر ټولو زیاتې اوبه لګوي او کوم یې تر ټولو لږې، ستاسې له نظره ددې لاملونه کوم دي؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د لوست متن، نقشه او شکل وګورئ او له هغو څخه په استفادې سره په افغانستان کې د اوبو د ستونزو او امکاناتو په اړه معلومات وړکړئ

## الف ـ د اوبو لګولو لویې پروژې




۶۰- شکل: له اوبو څخه باید څه ډول ښه ګټه واخلو؟

په تېر لوست کې په دې حقیقت باندې و پوهیدئ چې د ځمکې پرمخ له ټولو اوبو څخه یوازې درې سلنه خوږې اوبه دي او وګړي له هغو څخه یوازې یوه سلنه برخه د څښلو، د کرنیزو ځمکو د خړوبولو او صنعت لپاره کاروي. د لویو سمندرونو او سمندرګیو اوبه تروې (مالګینې) دي، له هغو څخه د کار اخېستو په خاطر باید هغه چاڼ او تصفیه شي.

د شلمې پیړۍ د نویمو کلنو په پای کې د نړۍ په کچه احساس شوه چې د ځمکې پرمخ د اوبو کمښت یوه لویه ستونزه ده. په هغو سیمو کې چې هلته د اوبو کمښت ترسترګو کیږي، خلک له بېلابېلو لاروچارو څخه په کار اخېستو سره خپلې اړتیاوې پوره کوي.

د نړۍ په هغو سیمو کې چې هلته اورښت څه ناڅه کافي دی او اندازه یې په کال کې تر ٤٥٠ میلي مترو پورې رسیږي، د اورښت په لنده بل سره کرنه کیدای شي، خو د لږ باران لرونکو سیمو کې باید د کرنې د پرمخ بیولو لپاره ونو- بوټو ته اوبه ورسول شي او ځمکې خړوبې شي.

څېړنو ښودلې ده چې کرنه د ټولې نړۍ په کچه په سلو کې اویا برخې اوبه لګوي. د کرنې په سلو کې ۳٦ محصولات د کرنیزو ځمکو په خړوبولو سره ترلاسه کیږي. له دې امله چې د نړۍ په ډېرو برخو کې اوبه لګول په فني بڼه نه ترسره کیږي، د ناسمو اوبو لګولو له امله په سلوکې ٦٠ اوبه له لاسه وځي. موږ همدا حالت په خپل هېواد کې هم لیدلای شو.

ګڼ مېشته او کرنیزې ځمکې د خړوبولو لپاره ډېرو اوبوته اړتیا لري، دا ځکه چې د یو کیلوګرام غلې د ترلاسه کولو په خاطر زرو لیترو اوبوته اړتیا ده. هغه سیمې چې هلته اورښت لږوي، باید د کرنیزو محصولاتو د ترلاسه کولو لپاره ځمکې خړوبه شي، چې دا کار د کانالونو د کیندلو، د بندونو د جوړولو، د اوبو لګولو د لویو پروژو او د ځاګانو کیندلوته اړتیا پیښوي. د اسیا په ځینو سیمو لکه په منځني ختیځ، د افریقې ځینو سیمو، د امریکې متحده ایالاتو او ان داچې زموږ په خپل هېواد کې د کرنیزو ځمکو د خړوبولو لپاره بېلا بېلې لارې چارې کارول کیږي. د نړۍ یو شمېر هېوادونه لکه اسرائیل د اوبو له زیات کمښت سره مخامخ دي، ددې لپاره چې ددې اوبو له لاسه ورکولو او بړاس کیدو څخه مخنیوی وکړي، د پایپ (نل) په واسطه د هر جلا جلا بوټي ریښوته اوبه ور رسوي. نوموړی هېواد د اړتیا وړ خپلې اوبه له ترکیې څخه چې ډیرې اوبه لري، د نل لیکو په واسطه لیږدوي. په دې توګه موږ ویلای شو چې د نړۍ هغه شمېر هېوادونو چې پوره اورښت نه لري، د خپلو کرنیزو ځمکو د خړوبولو لپاره د اوبو لګولو بیلابیل سیستمونه جوړ کړي دي.




٦١- شکل

د اوبو د چاڼولو شکل

## ب- د اوبو چاڼول (تصفیه):

اوبه ولې او څرنګه باید چاڼې شي؟

په نړۍ کې یوازې داوبو کمښت یوه لویه ستونزه نه ده، بلکې له هغو څخه ناسمه استفاده هم یوه لویه ستونزه ده چې د اوبو د ضایع کیدلو سبب کیږي. سربېره پر دې انسانان د خپلو بې سنجشه عملونو له امله د اوبو د ککړتیا لامل کیږي. د اوبو، ککړتیا یعنې په هغو کې فزیکي، کیمیاوي او میکروبي بدلونونه دي چې د هغو په پیښیدو سره انسان نه شي کولای له اوبو څخه سمه او روغتیایي ګټه واخلي.



۶۲- شکل: د پاشلو په بڼه د اوبو لګولو یو ډول چې په پایپ سره ترسره کیږي

له کورونو او صنعتي تاسیساتو څخه په اوبو کې د ناپاکیو ور اچول، د صنعتي فاضله اوبو، ورګډول، د روغتونونو او کورونو څخه د ناپاکو اوبو ورګډول او هغه تودوخه چې د کارخانو د ماشینو له امله په اوبو ور زغمل کیږي او داسې نور ټول لاملونه د اوبو، د ککړتیا او تودیدو سبب کیږي چې دا ټول ولاړو اوبو او د سیندونو ژوندیو ژوو ته زیان رسوي. همدارنګه د ونو ـ بوټو د ناروغیو ضد درمل او کیمیایي سرې چې په کرنیزو ځمکو کې کارول کیږي هم د اوبو د خاورې د ککړتیا لامل ګرځي، نو ځکه هغه اوبه چې په کرنه، صنعت او د کور په چارو کې په کاریږي، باید پاکې او خوږې وي او وروسته تر استعمال څخه مخکې له دې چې له جهیلونو او سیندونو سره ګډې شي باید له کیمیاوي او فزیکي پلوه چاڼ شي. همدارنګه مخکې تردې چې د ځمکې د مخ له اوبو څخه د څښلو د اوبو په توګه کار واخلو باید چاڼ شي.

تاسې د اوبو د چاڼولو په شکل کې ولیدل چې اوبه په ځینو سیمو کې د چاڼولو بیلابیل پړاوونه تېروي،

تر څو چې د ښځنلو وړ وګرځي، یاهم پرته د کومې ستونزې له پیداکولو څخه د ژوند په چاپېریال کې وبهیږي.
له دې امله چې د ځمکې د مخ اوبه د هرې ورځې په تېریدو سره ککړېږي، د اوبو د چارو شرکتونو ته دا ستونزمنه ده چې د نړۍ په کچه پاکې او روغتیایي اوبه تولید کړي. د نړۍ په ډېرو برخو کې د ځمکې لاندې پاکو اوبو څخه چې معمولاً پاکې دي یاهم ډېر لږ او عادي چاڼول غواړي، د ښځنلو لپاره کار اخېستل کیږي. په لویدیځو هېوادونو کې د ناولو اوبو فاضلابونو څخه د بیا دوران ( Recycle) په بڼه د ښځنلو اوبه ترلاسه کوي چې د جلاچڼ ځای په واسطه د څوڅو پړاوونو په ترڅ کې ښاریانو ته بیا د استفادې وړ ګرځي.



**د ټولګي دننه فعالیت:**

د اوبو د پروژو نقشه وګورئ، لاندېنیو پوښتنو ته ځواب ووایئ؟

۱ـ کوم هېواد تر ټولو زیات د اوبو بندونه لري؟ نومونه یې واخلئ.
۲ـ د سوډان هېواد د سمندري اوبو، د چاڼولو څو چاڼځایونه لري او د کوم سمندرګي اوبه چاڼوي او کار ورڅخه اخلي؟
۳ـ د نیل د سیند او د هغه پر مرستیالانو باندې څو بندونه جوړشوي دي او د څو نورو بندونو د جوړولو پلانونه لري؟
۴ـ کوم هېوادونه تر ځمکې لاندې اوبو څخه کار اخلي؟



**پوښتنې:**

۱ـ د نړۍ د کرنیزو محصولاتو په سلوکې څو برخې د کرنیزو ځمکو په خړوبولو سره ترلاسه کیږي؟
۲ـ څڅول (قطره یي) یاد نل لیکو په واسطه خړوبول ولې او څرنګه ترسره کیږي؟ توضیح یې کړئ.
۳ـ اوبهٔ څرنګه ککړېږي او د ککړو اوبو چاڼول څرنګه کیږي؟
۴ـ د سمندرونو او سمندرګیو له اوبو څخه ولې ډېر لږکار اخېستل کیږي؟



**له ټولګي څخه بهر فعالیت:**

د اوبو اړوند لوستونه وګورئ، د اوبو ارزښت، د هغو د ستونزو لکه کمښت، ککړتیا، ناسمو کارولو او چاڼولو په هکله او د اوبو د اغیزمنې کارونې په اړه په شفاهي توګه خبرې وکړئ.

# ۲،۴ کرنه او د هغې نوې لارې - چارې


۶۳- شکل په هالنډ کې میکانیزه کرنه

د لوست تصویرونه وګورئ!
د کرنې نوې لارې چارې په کوم تصویر کې د کومو نښو له مخې لیدل کیږي؟

کرنه د انسان د لومړي ډول فعالیتونو له ډلې څخه شمېرل کیږي. انسانان د خپلو اړتیا وړ شیانو لکه خوراک، کور، پوښاک او د ژوند د پرمخ بیولو وسایلو او د سون توکو د چمتوکولو لپاره په طبیعي چاپېریال پورې تړلي دي. چې په دې لړ کې کرنه د انسانانو تر ټولو لومړنۍ اړتیا ده. له همدې امله بشري ټولنې تل د طبیعي چاپېریال د بنې په بدلون او تولید لاس پورې کوي. انسان د خاورې، طبیعي غوره اوبو او هوا او د خپل څواک او نورو امکاناتو لکه د تخم کرل، سرې، پانګې او د کرنیزو وسایلو څخه کار اخېستلو سره له ډېر پخوا څخه کرنیزې چارې په بیلابیلو بڼو پرمخ بیولې دي.

سره له دې چې د نوو اوپر مختللو کرنیزو لارو - چارو په غوره کولو او د عصري تخنیکونو او وسایلو څخه په کار اخېستو سره کرنې د پام وړ پرمختګ کړی، په تېره بیا په پرمختللو هېوادونو کې په دې برخه کې ډېره پرمختیا شوې ده، خوبیاهم په اوسني وخت کې په ټوله نړۍ کې له ۸۰۰ میلیونو تنو څخه زیات خلک په خوار څواکۍ باندې اخته دي او له دوه میلیونو څخه زیات وګړي د خوراکي توکو له کمښت سره مخامخ دي.

د کرنې لارې چارې او سیستمونه هم په ټوله نړۍ کې یوشان نه دي، لکه څرنګه چې د کرنې د سیستمونو د مهمو ډولونو په نقشه کې ښکاري، موږ کولای شو په ټوله نړۍ کې د کرنې دوه ډوله مهم سیستمونه سره بیل کړو:

- **عنعنوي یا دودیز سیستم**: په دودیز کرنیز سیستم کې د انساني څواک او وروسته پاتې

لومړنیوو وسایلو څخه کار اخېستل کیږي چې نوبتي کرنه د څارویو د رمو ساتنه او د آسیا په جنوب ختیځ کې په مرطوبو سیمو کې د وریجو کرل د هغه بیلګه ده. په د غه ډول کرنیز سیستم کې د تولید اندازه او اقتصادي ګټه ډیره لږ ه ده او کوم کرنیز محصولات چې تر لاسه کیږي، یوازې د بزګر د کورنۍ اړتیا پوره کولای شي. دغه ډول کرنه د پرمختیایي هېوادونو په ډیرو برخو کې لیدل کیږي.

• **تجارتي یا میکانیزه سیستم**: په دغه سیستم کې د کرنې له پرمختللو لارو ـ چارو او نوو وسایلو لکه تراکتور، کمپاین، اصلاح شوو تخمونو او کیمیاوي سرې څخه کار اخېستل کیږي. کرنیزې کروندې پراخه وي او د تولید اندازه پوره زیاته وي. همدارنګه د کرنیزو توکو تولید د صادراتو د خرڅلاو لپاره وي. نوموړی پرمختللی سیستم معمولاً په صنعتي او پرمختللو هېوادو کې ترسترګو کیږي.

له دې امله چې د نړۍ نفوس په تېره بیا په پرمختیایي او کرنیزو هېوادونو کې مخ په زیاتیدو دی او دوی د کرنیزو تولیداتو زیاتوالي ته زیاته اړتیا لري، نو دا ددې غوښتنه کوي چې د کرنې نوې لارې چارې د چاپېریال ساتنې سره یوځای وي. کرنې ته باید دوامدار کار وشي او له خاورو او اوبو څخه معقوله او غوره استفاده وشي.

خاوره چې د ونو ـ بوټو د کرلو لپاره ځانګړې ارزښت لري، باید له شړیدلو، ویجاړیدو او شاړې پاتې کیدو څخه وساتل شي، باید د هغې د ککړتیا مخه ونیول شي اوپه پرمختیایي هېوادوکې باید د ځنګلونو د پرې کولو چې د خاورې ساتنه کوي مخه ونیول شي، باید د اوبه خور او خړوبولو تخنیک ښه شي، د خاورې د بډایه کیدو په خاطر باید په کرونده کې بیلابیل بوټي وکرل شي، داوبو د زیرمه کولو او ایسارولو لپاره باید



په اروپا کې د یوې کروندې انځور چې د میکانیزه او پرمختللې کرنې یوه بیلګه ده

ذخيرې او د اوبو بندولو بندونه جوړ شي.

د کرنې يوه نوې لاره همدا ده چې له اوبو څخه غوره استفاده وشي. هغه هېوادونه چې د هغو کرنيز توليدات په اوبو پورې تړلي دي او د اوبو له کمښت سره مخامخ دي، هڅه کوي چې له اوبو څخه اغيزمنه ګټه واخلي چې يوه بېلګه يې قطره يي يا په نل ليکو کې د اوبو رسول دي چې په تېر لوست کې ورڅخه يادونه شوې ده. د کرنې د پرمختګ لپاره داهم اړينه ده چې د کرنيزو محصولاتو لپاره د خرڅلاو ښه بازار و موندل شي. ځينې پرمختللي صنعتي هېوادونه او په دې لړ کې د اروپا د اتحاديې غړي هېوادونه د بزګرانو د ملاتړ لپاره سبسايډۍ او مالي مرستې هم کوي او د کورنيو محصولاتو د پياوړتيا په خاطر يې يو ګډ کرنيز سياست غوره کړی دی. ددې موخې لپاره دوی له پرمختيايي هېواد څخه د کرنيزو محصولاتو د واردولو په برخه کې لوړې ګمرکي تعرفې وضع کوي او په حقيقت کې د ازادې سيالۍ مخه نيسي، د دوی دغه سياست د سوداګرۍ د نړيوال سازمان له مخالفت سره مخامخ شوی ځکه چې نوموړی سازمان د ازاد او بې قيد او شرطه سوداګرۍ پلوي د ی.




په نړۍ کې د کرنې د سيستم ستر ډولونه

٦٥- شکل

۶۶- شکل: د فرانسې په شمال کې د صنعتي بوټو د کروندې انځور



**د ټولګي دننه فعالیت:**

په نړۍ کې د کرنې د مهمو سیستمونو د نقشې په کتلو سره لاندېنيو پوښتنو ته په څلور کسیزو ډلو کې ځواب ورکړئ:

۱. نوښتي کرنه چې یو ډول دودیزه کرنه ده، په عمومي توګه د نړۍ په کومو برخو کې رواج ده؟

۲. سوداګریزې کرنې (ګډکښت) د نړۍ په کومو برخو او سیموکې پراختیا موندلې ده؟

۳. د کرنې لپاره نا مناسبې ځمکې د نړۍ په کومو برخو کې دي او ستاسې له نظره ولې کرنې ته مناسبې نه دي؟

**پوښتنې:**

۱. څو ډوله کرنيز سیستم یا کرنيزې لارې چارې شته؟ نوم یې واخلئ.

۲. قطره یي اوبه لګول څه ډول دي او موخه یې څه ده؟

۳. د کرنې لپاره نامناسبې ځمکې د نړۍ په کومو برخو کې دي او ستاسې له نظره ولې کرنې ته مناسبې نه دي؟

**له ټولګي څخه بهر فعالیت:**

د لوست متن، تصویرونه او نقشې وګورئ او په راتلونکي لوست کې د هغو په هکله معلومات بیان کړئ.

## پنځه دیرشم لوست

# د نړۍ په پرمختللو هېوادونو کې د کرنیزو تولیداتو د بیلابیلو ډولونو اندازه




۶۷ - شکل

په ۲۰۰۵ م کال کې کومو هېوادونو ډېر زیات غنم، وریجې او جوار تولید کړي وو؟

ددغه لوست شکلونه وګورئ. لکه چې په (الف) شکل کې ښکاري، په ۲۰۰۵ م کال کې په نړۍ کې ۶۲۸۱۰۱۰۳۵ ټنه غنم تولیدشوي دي چې په سلو کې ۱۵,۹ یې په چین کې تولید شوي دي. له چین څخه وروسته په ترتیب سره په سلوکې ۱۲,۵ په هندوستان کې، په سلوکې ۹,۱ د امریکې په متحده ایالاتو کې، په سلوکې ۷.۵ په روسیه کې، په سلوکې ۵,۹ په فرانسه کې، په سلوکې ۴,۱ په کاناډا کې، په سلوکې ۳,۸ په استرالیا کې، پاتې په سلوکې ۳۲,۲ غنم په دغه کال کې د نړۍ په نورو هېوادونو پورې اړه لري. په (ب) او (ج) تصویرونو کې د وریجو، جوارو، کچالو او د غوښې تولیدات په ټوله نړۍ کې ښوول شوي دي:

ج) په نړۍ کې د جوارو تولیدات ۲۰۰۵ کال
ټول تولیدات ۶۹۴۵۷۵۵۵۲ ټنه
(د هر هېواد تولیداتو سلنه (فیصدي

| | |
|---|---|
| ۱- د امریکې متحده ایالات | ۴۰.۳ |
| ۲- چین | ۱۹.۱ |
| ۳- برازیل | ۵.۰ |
| ۴- مکسیکو | ۳.۰ |
| ۵- ارجنتاین | ۲.۸ |
| ۶- ؟ | ۲.۱ |
| ۷- فرانسه | ۱.۹ |
| ۸- اندونیزیا | ۱.۷ |
| ۹- سهیلي افریقا | ۱.۷ |
| ۱۰- ایټالیا | ۱.۵ |
| ۱۱- نور هېوادونه | ۲۰.۹ |



د) په نړۍ کې د کچالو تولیدات ۲۰۰۵ کال
ټول تولیدات ۳۲۱۰۶۰۸۵۲ ټنه
(د هر هېواد تولیداتو سلنه (فیصدي

| | |
|---|---|
| ۱- چین | ۲۲.۷ |
| ۲- روسیه | ۱۱.۳ |
| ۳- ؟ | ۷.۸ |
| ۴- اوکراین | ۶.۱ |
| ۵- د امریکې متحده ایالات | ۶.۰ |
| ۶- المان | ۳.۵ |
| ۷- پولنډ | ۳.۴ |
| ۸- بیلاروسیه (سپینه روسیه) | ۲.۵ |
| ۹- هالنډ | ۲.۱ |
| ۱۰- فرانسه | ۲.۰ |
| ۱۱- نور هېوادونه | ۳۲.۶ |



۶۸- شکل

هـ . په نړۍ کې د غوښې تولیدات ۲۰۰۵م کال
ټول تولیدات ۲۶۵۱۰۵۹۴۰ ټنه
د هر هېواد د تولیداتو سلنه

| | |
|---|---|
| ۱- چین | ۲۰.۹ |
| ۲- د امریکې متحده ایالات | ۱۴.۹ |
| ۳- برازیل | ۷.۵ |
| ۴- آلمان | ۲.۶ |
| ۵- هند | ۲.۴ |
| ۶- فرانسه | ۲.۳ |
| ۷- هسپانیه | ۲.۲ |
| ۸- مکسیکو | ۱.۹ |
| ۹- روسیه | ۱.۸ |
| ۱۰- کاناډا | ۱.۸ |
| ۱۱- نور هېوادونه | ۳۳.۳ |




۶۹- شکل



۷۰- شکل: هغه سیمې چې مدیترانه یي اقلیم لري، د غلو - دانو ترڅنګ په کې د زیتونو او انګورو بوټي هم ډیر لیدل کیږي



### د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې د ښوونکي تر لارښوونې لاندې په څلور کسیزو ډلو وویشل شي، د لوست شکلونه دې وګوري او لاندیني فعالیتونه دې ترسره او د خپلو فعالیتونو پایلې دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

۱ـ د شکل له مخې په ۲۰۰۵ م کال کې د نړۍ کوم هېواد د وریجو ډېر زیات تولیدات درلودل او تولیدات یې په سلوکې څومره وو؟ ویې لیکئ.

۲ـ د همدې لوست د شکلونو له مخې د امریکې په متحده ایالتونو، روسیې، هند، آلمان او د فرانسې په هېوادونو کې د وریجو، جوارو، کچالو او غوښې د تولیداتو سلنه (فیصدي) ښکاره کړئ.



### پوښتنې:

په خپلو کتابچو کې د پوښتنو سم ځوابونه په نښه کړئ.

۱ـ هغه هېواد چې په ۲۰۰۵ م کال کې یې د غنمو، وریجو، کچالو او غوښې ډېر زیات تولیدات درلودل دا و:

الف. د امریکا متحده ایالات ب. هند ج. چین د. روسیه

۲ـ هغه هېواد چې په ۲۰۰۵ کال کې یې د غنمو او وریجو په تولید کې دویم ځای نیولی و دادی:

الف. چین ب. هند ج. د امریکې متحده ایالات د. فرانسه

۳ـ هغودوو هېوادونو چې په یوازیتوب سره یې د ټولې نړۍ په سلوکې له پنځوسو څخه زیات جوار تولید کړي وو دادي:

الف. فرانسه او آلمان ب. روسیه او هالنډ ج. چین او برازیل د. چین او د امریکې متحده ایالات



### له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د لوست د شکلونو او نورو سرچینو په کتلوسره د نړۍ د هغو پنځو هېوادونو نومونه واخلئ چې د کرنې تر ټولو زیات تولیدات یې لرل. همدارنګه خپل نظر ولیکئ چې ولې په دغو هېوادونو کې د کرنې تولیدات زیات دي، په څو کرښو کې یې ولیکئ او په بل لوست کې یې بیان کړئ.

# پنځم څپرکی
# انرژي

## په دې څپرکي کې لولو:

- انرژي او په نړۍ کې د هغې اهمیت
- د انرژۍ ډولونه
  - د اوبو برېښنا
  - بادي برېښنا
  - د لمر انرژي
  - هسته يي برېښنا
  - حرارتي برېښنا
- په نړۍ کې نفت
- طبیعي ګاز
- په نړۍ کې د ډبرو سکاره
- د انرژۍ د منابعو جغرافیایي وېش

## د څپرکي عمومي هدفونه:

**زده کوونکي به ددغه څپرکي په لوستلو سره لاندېنيو پوهنيزو موخوته ورسېږي:**

- په نړۍ کې به د استفادې وړ انرژۍ په ډولونو پوه شي.
- د نړۍ د انرژۍ د لګښت په اندازه به وپوهيږي.
- د نړۍ د انرژۍ د منابعو اندازه به وپېژني.
- د نړۍ د انرژۍ د سرچينو په جغرافيايي وېش باندې به وپوهېږي.

**زده کوونکي به د دغه څپرکي په لوستلو سره لاندېنيو مهارتي هدفونوته ورسيږي:**

- د انرژۍ ډولونه به فهرست کړای شي.
- د نړۍ په کچه به د انرژۍ د ډولونو د لګښت اندازه توضيح کړای شي.
- د نړيوالې انرژۍ د سرچينو اندازه به وويلای شي.
- د نقشې پر مخ به د انرژۍ د سرچينو لرونکې مهمې سيمې وښودلای شي.

## ۵،۱ انرژي او په نړۍ کې دهغې اهمیت



۷۱- شکل

په کالیفورنیا کې د بادي جنراتورونو انځور چې د برېښنا د انرژۍ د تولید لپاره ورځخه کار اخېستل کېږي.

هر هغه څه چې د کار کولو وړتیا ولري انرژي (Energy) لري. په بله وینا: د کار کولو توان ته انرژي ویل کېږي. د انسان وجود انرژي لري، ځکه چې د کارکولو استعداد په کې شته، په ورځنۍ اصطلاح کې انرژي ډېره کارول کېږي. د بېلګې په توګه، هغه څوک چې ډېر کار کوي هغه ته د ډېرې انرژۍ لرونکی ویل کېږي. زموږ شاوخوا شیان خپله انرژي لري. که یو فلزي غونډاری په ځوړ لرونکې سطح باندې ورغړې څه چې په مخه ورشي هغه بېځایه کوي، نو دغه غونډاري یو کار وکړ، نو هر هغه څه چې د کارکولو وړتیا ولري، انرژي هم لري. انرژي په حقیقت کې خوځښت، غورځنګ او تحرک دی چې دغه خوځښت اوحرکت د سوداګرۍ، صنایعو، ترانسپورت او اقتصادي، ټولنیزو او کلتوري فعالیتونو پراخه برخه ده.

له دې پلوه انرژي او په نړۍ کې دهغې سر چینې غوره اقتصادي اهمیت لري. انسانانو له ډېر پخوا راهیسې انرژي پېژندله او له هغې څخه یې ډول، ډول استفاده کوله، دهغې له تودو خې او رڼا څخه یې د پخلي، دکورونو دروښانه کولو او تودولو لپاره کار اخیست.

په منځنیو پیړیوکې د انرژي له سرچینو څخه کار اخېستلو زیات اهمیت وموند، دا ځکه چې انسانانو د باد او له اوبو د انرژۍ له سرچینو څخه په کار اخېستلو سره بادي او د اوبو ژرندې جوړې کړې.

په اتلسمه پیړۍ کې د بخار ماشین په جوړېدو سره او د صنعتي انقلاب له پېښېدو وروسته په صنایعو کې بشریت ته لوی بریالیتوب او بدلون وربه برخه شو، ځکه چې په کار خانوکې د کارګر د مټ اولاس د ځواك پرځای له ماشین څخه کار واخېستل شو او په صنایعو کې د ډبرو سکرو استعمالولو پرمختیا وکړه. دغه محرکه ځواك په صنایعو کې بدلونو نه راوستل او په لنډ وخت کې یې د هرډول اقتصادي او صنعتي چارو د پیاوړتیا لاره هواره کړه.

دشلمې پیړۍ په نیما یي کې د ګاز او نفتو د انرژۍ سر چینو چټك پرمختګ وکړ، انرژي لازیات ارزښت وموند چې دې کار د فابریکو او کارځایونو په جوړېدو او پرمختګ کې ژوره اغېزه درلوده او بشر د انرژۍ له بېلا بېلو ډولونو څخه د اقتصاد په بیلابیلو برخوکې ګټه واخېسته.

د انرژۍ د تولید بېلا بېلې سر چینې دادي: د ډبرو سکاره، نفت، ګاز، اوبه اونور چې په راتلونکو لوستونو کې به د هرې یوې په هکله خبرې وشي.



## د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په څو ډلو وویشل شي، هره ډله دې د انرژۍ د اهمیت او ارزښت په هکله خبري وکړي او دخپلو خبرو پایله دې نوروته وړاندی کړي.



## پوښتني:

۱- انرژي څه ته وایي او بشري ټولنې ورته څه اړتیا لري؟

۲- د انرژۍ مهمې سر چینې کومې دي؟ نوم یې واخلئ.

۳- انرژي په کومو برخوکې ډیر اهمیت لري؟ معلومات ورکړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

دغه لوست او د انرژۍ اړوند لوستونه چې پخوا تاسې د افغانستان په برخه کې لوستي وو، یوځل بیا ولولئ او ځان ور سره آشنا کړئ.

## اووه دیرشم لوست

# ۲،۵ د انرژۍ ډولونه




۷۲- شکل

د انرژۍ څو ډوله سرچینې پېژنئ؟

په مخکېني لوست کې په نړۍ کې د انرژۍ او د هغې د اهمیت په هکله معلومات وړاندې شول په دغه لوست کې به د انرژۍ بیلابیل ډولونه وپېژنئ.

په نړۍ کې بېلا بېلې انرژۍ شته چې انسانانو د هغو له یو شمېر څخه له ډېرېخوا څخه کار اخېست، په تېره بیا د باد او اوبو له ځواک څخه ډېر کار اخېستل شوی دی چې غوره بیلګې یې بادي او د اوبو ژرندې دي لکه څرنګه چې د افغانستان په برخه کې هم ولوستل شول، انرژي بیلابیل ډولونه لري او له بیلابیلو سرچینو لکه باد، لمر او اوبو څخه ترلاسه کیږي. همدارنګه هسته یي او حرارتي انرژي هم شته.

## برېښنا

د برېښنا انرژي له بیلابیلو سرچینو څخه تر لاسه کیږي چې کولای شو د اوبو، باد، لمریزې هسته یي او حرارتي برېښنا نوم واخلو چې د هرې یوې په هکله به یې معلومات درکړل شي:

ـ د اوبو برېښنا

اوبه په نړۍ کې د تولید ارزانه او ډېره لویه سرچینه ده. نن ورځ د برېښنا د تولیدوونکو توربینونو په لګولو سره د اوبو له ځواک څخه برېښنا تولیدیږي، د برېښنا زیاتره توربینونه د بندونو په لاندینۍ

برخه کې وي چې اوبه له یوې لوړې ارتفاع څخه ورباندې ورځي او له هغو څخه برېښنا تولیدېږي.
هغه عوامل چې د اوبو د برېښنا په تولید کې مهم رول لري هغه دادي:
۱ـ د سیند د اوبو زیاتوالی، دایمي والی او جاري توب.
۲ـ د سیندونو په تګلوري کې د پوره ځوړونو شتوالی.
۳ـ د سیندونو په تګلوري کې د لوړو برخو شتوالی.
د برېښنا لېږدول له یوې سیمې تر بلې سیمې (د ترلاسه کولو مرکزونو څخه د لګولو تر سیمو) پورې په ډېر ګرنډیتوب ترسره کیږي، خو د برېښنا لویه نیمګړتیا همدا ده چې وروسته تر تولید څخه زیرمه کیدای نه شي او له تولید سره یوځای مصرفیږي.
په نړۍ کې هغه پنځه سیمې چې تر ټولو زیات د اوبو د برېښنا پرمختللی ځواک لري دادي: په اروپا کې لویدیځې جنوبي او مرکزي سیمې، په آسیا کې جاپان او په امریکې کې د امریکا متحده ایالتونه. هغه یو شمېر نورې سیمې چې له دې پلوه ډېر اهمیت لري د روسیې اروپایي برخه او د برازیل دختیځ غرنۍ سیمې دي.
په اروپا کې هغه غرونه چې تل په هغو باندې واورې وریږي لکه په شمال کې د سکندنیوا غرونه، په مرکزي سیمو کې د الپ غرونه او په جنوب لویدیځ کې پیرنې غرونه د برېښنا د تولید لپاره ډېر غوره دي. په آسیا کې جاپان زیاته اندازه برېښنا تولیدوي.
د امریکا متحده ایالات د اوبو د برېښنا لوی تولیدوونکی هېواد دی چې د کولمبیا او کلوراډو له سیندونو څخه یې ترلاسه کوي. دغه هېواد په سلوکې ۱۳ د اوبو له برېښنا څخه کار اخلي. په شمالي امریکا کې په تېره بیا په کاناډا کې د ټولې برېښنا دوه پر دریمه برخه له سیندونو څخه بشپړیږي. ددغه هېواد د اوبو د برېښنا لومړنۍ کارخانه د نیاګارا په شرشره باندې جوړه شوې وه.
نن ورځ کاناډا د نړۍ د اوبو د برېښنا یو لوی تولیدوونکی هېواد دی. په روسیه او اوکراین کې د برېښنا صنایع په سیندونو باندې جوړشوي چې د والګا پرسیند باندې د نړۍ د اوبو د برېښنا دوه ستر بندونه جوړ شوي دي. هغه هېوادونه چې په اروپا کې د اوبو د برېښنا زیات ځواک لري، ناروې، سویډن او فرانسه دي. په دغو هېوادونو کې د اوبو برېښنا دومره پراختیا موندلې چې ددغو هېوادونو صنعت ته یې ډېره پرمختیا ورکړې ده. په ایټالیا کې ددغه هېواد ټولې د اوسپنې د پټلیو لار د پو د سیند د اوبو په برېښنا چلیږي. د سویډن په سلوکې ۹۰ برېښنا اوبو له برېښنا څخه ترلاسه کیږي.

## بادي برېښنا

نن ورځ د بادي جنراتورونو څخه په کار اخېستو سره چې په باد باندې چليږي د برېښنا انرژي ترلاسه کيږي. د باد له انرژۍ څخه استفاده د برېښنا د توليد ډيره ګړندۍ لاره ده. بادي توربينونه او هغو ته ورته نور وسايل ډيره اندازه او ډير کار ورکوي. د اروپا دوه پر دريمه برخه ترلاسه کيدونکې برېښنا د باد له انرژۍ څخه ده، وروسته ورپسې بيا شمالي امريکا په دويمه درجه کې ده.

په مجموع کې اروپا په سلوکې ٦٥، شمالي امريکا په سلوکې ٢٢، اسيا په سلوکې ١٢ او نور براعظمونه په سلوکې يوه برخه بادي برېښنا توليدوي.



٧٣- شکل: د برېښنا د توليد د يوې فابريکې انځور چې د ډبرو د سکرو په سوځيدو سره د ډبرو سکرو انرژي په برېښنايي (الکتريکي) انرژۍ باندې اړوي.

## د لمر انرژي (Solar Energy)

لمر د انرژۍ يوه لويه منبع ده چې د وړانګو او تودوخې په بڼه د ځمکې کرې ته رارسيږي، دا يوه د وړانګې په بڼه خپريدونکې انرژي ده چې د څپو به بڼه ليږل کيږي او رڼا او تودوخه توليدوي.

د لمر انرژي د ځانګړو صفحو او هيندارو په واسطه زيرمه کيداى شي او بيا د برېښنا د توليد او د تودوخې د ترلاسه کولو لپاره ورڅخه کار اخېستل کيږي. تر اوسه پورې د لمر له انرژۍ څخه تل او زيات کار نه اخېستل کيږي، يعنې يوازې کله چې د لمر وړانګې وي استفاده ورڅخه کيږي، له بلې خوا لمريز سلولونه لږه برېښنا توليدوي، نو ځکه له لمر څخه ترلاسه کيدونکې برېښنا د ډبرو

د سکرو او د نفتو د برېښنا په پرتله ګرانه ده.

## هسته يي برېښنا

هسته يي برېښنا هغه ځواك دی چې د نړۍ تر ټولو کوچنيو او پرېمانه ذرو يعنې اتومونو کې شته. د هسته يي انرژۍ د سون توکي چې په ذروي ريکتورونو کې په کارېږي، ډېره زياته انرژي توليدوي. د هسته يي انرژۍ يو لوی خطر د راديو اکتيف (هسته يي وړانګو) ازاديدل دي. دغه توکي کيدای شي په هوا، اوبو او سمندرونو کې خپاره شي اوپه زرګونو متره ځای ونيسي. ددغو توکو ډېره لږه اندازه د وحشي ژويو، ونو، بوټو او د انسانانو ژوند ته زيان رسوي او زياته اندازه يې د مرګ لامل ګرځي.

د هسته يي انرژۍ ښيګنه داده چې د لږسون توکو په سوځيدو سره ډېره زياته اندازه انرژي توليدوي. دهسته يي انرژۍ سون توکي د ډبرو سکرو، نفتو او ګازونو په پرتله ډېر دوام لري. فوسيلي توکي هم د ځمکې هوا تودوي او هم کيمياوي ککړتيا رامنځ ته کوي، خو هستوي انرژي دا ستونزې نه پيداکوي، خو هستوي انرژي ډېر ضايعات لري. دغه ضايعات چې د راديو اکتيف شيان دي، دومره خطرناك دي چې په سلګونو زره کلونه دوام کولای شي. په اوسني وخت کې هسته يي ضايعات ډېران کيږي، خو هيڅوك نه پوهيږي چې هغه څنګه بې خطره کړي او ياهم په راتلونکي کې هغه په کوم مناسب ځای کې ښخ کړي.

په اوسني وخت کې د نړۍ په پرمختللو هېوادونو کې د اتومي برېښنا کارخانې جوړې شوي دي چې په دوی کې د امريکا متحده ايالات لومړی مقام، فرانسه دويم مقام، جاپان دريم مقام او روسيه څلورم مقام لري. يو شمېر هېوادونه لکه انګلستان، جنوبي کوريا، چين، هند، المان او کاناډا هم د اتومي برېښنا کارخانې لري.

## حرارتي برېښنا

حرارتي برېښنا د صنعتي کارخانو په رامنځ ته کيدو او پرمختيا کې ډېر لوی بدلون راوست، دا هغه نوی پرمختګ دی چې د بشر په برخه شوی دی. حرارتي برېښنا د ډيزلو، نفتو، ګازو او د ډبرو سکرو له سوځولو څخه ترلاسه کيږي . په اوسني وخت کې د حرارتي برېښنا د توليد د فابريکو برخه مخ په زياتيدو ده. د حرارتي برېښنا ډېره مهمه منبع د ډبرو سکاره دي چې له هغو څخه په سلوکې پنځوس برخې برېښنا ترلاسه کيږي. د حرارتي برېښنا په ترلاسه کولو کې زياتره له نرمو يا

قير ډوله ډېرو سکرو څخه کار اخېستل کيږي، دا ځکه چې داهم ارزانه دي او هم ډېره تودوخه لري. که يو کيلو او څلورسوه او پنځوس ګرامه د ډېروسکرو ته تر اووه زره کالوريو پورې تودوخه ورکړل شي يو کيلوواټ برېښنا توليدوي. د نړۍ د ټولو هېوادونو په واک کې چې کومې سرچينې دي، ورڅخه حرارتي برېښنا توليدوي، د بيلګې په توګه: د امريکا په متحده اياﻻتونو کې له توليد شوې ټولې برېښنا څخه په سلوکې ۵۰ د ډېرو سکرو څخه، په سلوکې ۱٤ له طبيعي ګازو او په سلوکې ۱۱ له نفتو څخه ترلاسه کوي. په عربي هېوادونو لکه: سعودي عربستان، کويټ، قطر، اردن، بحرين او نورو کې زياتره حرارتي برېښنا د نفتو له سوځولو څخه ترلاسه کوي.



۷٤- شکل د اتومي برېښنا د توليد يوه کار خانه.



## د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو وویشل شي، د اوبو د برېښنا او اتومي انرژۍ نقشه دې وګوري، لاندینی فعالیت دې ترسره کړي او د خپل فعالیت پایله دې په ټولګي کې وړاندې کړي:

۱ـ په سپینو، خړو او ابي رنګونو باندې نښې او سمبولونه په نقشه کې د څه شي مفهوم لري؟

۲ـ د همدغې نقشې د معلوماتو پر بنسټ کوم هېواد په نړۍ کې تر ټولو زیات د اوبو د برېښنا تولیدات لري اوپه ۲۰۰۳ م کال کې یې تولیدات په یوه ساعت کې څو میلیارده کیلوواټه وو؟

۳ـ د همدغې نقشې د معلوماتو پر بنسټ د نړۍ کوم هېواد د اتومي انرژۍ ډېرزیات تولیدات لري اوپه ۲۰۰۳ م کال کې یې تولیدات په یوه ساعت کې څو میلیارده کیلوواټه وو؟

٤ـ د همدغې نقشې له مخې د نړۍ د دریو نورو هېوادونو نوم ولیکئ چې د اوبو د برېښنا او د اتومي انرژۍ زیات تولیدات لري.



## پوښتنې:

د لاندېنیو پوښتنو ډېر سم ځواب غوره او په خپلو کتابچو کې یې په نښه کړئ.

۱ـ هغه هېواد چې د اوبو دبرېښنا په تولید کې لومړی مقام لري دادی:

الف. روسیه　　ب. کاناډا　　ج. برازیل　　د. چین

۲ـ هغه هېوادونه چې د اتومي برېښنا په تولید کې لومړی او دویم مقام لري دادي:

الف. انګلستان او چین　　ب. جنوبي کوریا او روسیه

ج. فرانسه او دامریکې متحده ایالات　　د. جاپان او ناروې

۳ـ هسته یي وړانګې کوم خطرونه او څه ضایعات لري؟ په دې هکله معلومات ورکړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د لوست د متن، تصویرونو او نقشو په لوستلو سره د انرژۍ او د هغې د ډولونو په هکله په راتلونکي لوست کې په شفاهي توګه خپلو ټولګیوالوته معلومات ورکړئ.

# په نړۍ کې نفت



۷۵- شکل: د فرانسې په جنوب کې د نفتو د یوه چاڼځای انځور

د نفتو زیرمې د نړۍ په کومو سیمو کې ډیرې دي؟

لکه چې په دویم څپرکي کې مو د افغانستان په برخه کې د افغانستان د نفتو او د هغو د حوزو په هکله معلومات ترلاسه کړل. په دغه څپرکي کې به د نړۍ د نفتو او د هغو د حوزو په هکله معلومات درکړل شي.

**نفت**: د ونو ـ بوټو او ژوو هغه پاتې شونې دي چې د جیولوجي په بیلابیلو دورو کې د وخت په تېریدو سره تر رسوبي طبقو لاندې راټولې، د خمیره کیدو، فشار او تودوخې له امله د نفتو د جوړیدو سبب شوي دي.

نفت په یوه کلي مفهوم سره د هایدروکاربن د جامد، مایع او گاز یو مخلوط دی چې زیاته برخه یې په مایع بڼه وي او په بیلابیلو درجوسره د هایدروجن او کاربن لرونکي وي، ناخالص توکي لکه سلفر او نایتروجن هم په کې وي.

په اوسنۍ نړۍ کې نفت ځانگړی اقتصادي اهمیت لري. د موټرو، اورگاډو، ټانکونو او الوتکو گرځیدل په نفتو پورې تړلي دي، نو ځکه د نړیوالو د پاملرنې وړ دي او د تولید اندازه یې هر کال

مخ په زیاتیدو ده. د نولسمې پېړۍ په نیمایي کې د نفتو د صنعت ډېره پرمختیا، هغوته د تقاضا د زیاتوالي له امله وه چې په اروپا کې د رڼا یوه مهمه منبع وه، خو له میلادي ۱۹۰۰ او ۱۹۱۰ کلونو څخه وروسته چې په نړۍ کې د موټر جوړولو صنعت ډېر پرمخ ولاړ او نفت د کبانو د ښکار کولو په بیړیو او اورګاډو کې په کارشول، د هغو اهمیت نورهم زیات شو، داځکه چې نفتي بېړیو کولای شول تر ۵۳ ورځو پورې یاله هغه څخه زیات په سمندرکې پاتې شي، نو ځکه د سوداګریزو، مسافري او جنګي بېړیو شمېر زیات او همدارنګه هغه محصولات چې د نفتو له مشتقاتو څخه ترلاسه کیدل، په صنعت کې د لوړ اهمیت لرونکي شول. له دې امله ده چې صنعتي هېوادونه د خپلو ګټو لپاره یو له بل سره په سیالۍ او کړکیچ کې دي او ان یوبل سره جګړې کوي چې دغه ډېره ګرانبیه شتمني لوټ کړي.

په ۱۹۹۰ م. کې عراق په خپل کوچني ګاونډي هېواد کویټ باندې یرغل وکړ او هڅه یې وکړه چې نفتي حوزې یې د خپل واک لاندې راولي، د جګړې په ترځ کې د نفتو ډېرو څاګانو اور واخېست د نفتو غوړ سمندرونوته ورغلل او د ژوند چاپېریال ته یې ډېر غټ زیان واړاوه.

جیولوجیکي څېړنو ښودلې ده چې په هغو ځایونو کې چې نفت وي، هلته د زرګونو مترو په ژوروالي څاګانې ایستل کیږي.

هغه لومړنۍ څاه چې په ۱۸۹۵ م کال کې د امریکې په پنسلوانیا کې وکیندل شوه ژوروالی یې ۲۰ متره و چې هره ورځ له هغې څخه څلور مکعب متره نفت ایستل کیدل. ورو ورو پنسلوانیا د نفتو د نوي صنعت مهم مرکز شو، خو هغه څاګانې چې نن ورځ کیندل کیږي، ډېرې ژورې دي، د بیلګې په توګه د امریکې په وایومینګ سیمه کې د څاګانو ژوروالی ۶۰۰۰ مترو پورې رسیږي. هغه نفت چې له څاګانو څخه را ایستل کیږي، تور رنګ لري چې د کارنه وي، خو له چاڼ کولو څخه وروسته بنفش رنګ غوره کوي او په آسانۍ سره سوځي.

هغه سیمې چې نفت لري دادي:

په آسیاکې: سعودي عربستان، عراق، کویټ، عربي متحده امارات، قطر ، روسیه، ایران، افغانستان، اندونیزیا او نور. په منځني ختیځ کې د نفتو ډېرې لویې او شتمنې نفتي حوزې او سیمې شته چې د نړۍ په سلو کې ۶۵ نفت لري.

عربستان د نفتو لومړنی تولیدوونکی هېواد او د نفتو لوی صادروونکی دی چې په یوازیتوب سره د نړۍ د نفتو څلورمه برخه نفت لري.

په اروپا کې: بلژیک، انګلستان، المان، فرانسه، ایټالیه، ناروې او هالنډ.

په امریکا کې: متحده ایالتونه د نفتو لوی تولیدوونکی هېواد دی او په عین وخت کې د نفتو لوی مصرف کوونکی هېواد هم دی ، د نفتو ډېره برخه یې د مکزیک خلیج ساحلي سیمې په تکزاس ایالت ، لوئیزیانا او الاسکا کې تولیدېږي. همدارنګه د کالیفورنیا، اوهایو، اوکلاهاما، ارکانزاس او مسي سي پي په ایالتونو کې هم نفت شته. ددغې سیمې د نفتو زیرمې د نړۍ تر ټولو شتمنې زیرمې بلل شوي دي.

په لاتینه امریکا کې، وینزویلا او اکوادور د نفتو لویې زیرمې لري. په افریقا کې دنفتو زیرمې په لاندېنیو سیمو کې دي:

لیبیا، الجزایر، نایجریا او ګابون. او نایجریه د نړۍ د نفتو لوی تولیدوونکي شمېرل کیږي.

له امریکا څخه وروسته جاپان د نفتو مهم واردوونکی دی چې په یوه ورځ کې ٤-٥ میلیونو بشکو پورې نفت پیري. د لویدیځې اروپا د هېوادونو په ډله کې المان، ایټالیا او فرانسه له نورو څخه زیات نفت واردوي. انګلستان هم تر دغو وروستیو کلونو پورې د نفتو مهم واردوونکی هېواد و، خو د شمال په سمندرګي کې د نفتو په را ایستلو سره اوس دغه هېواد پرځان متکي شوی دی.



٧٦- شکل د نفتو د یوې څاکیندل

نفت په نننۍ نړۍ کې د استعمال زیات ځایونه لري. له نفتي محصولاتو څخه د مصنوعي الیافو، جامو او رختونو، د مصنوعي پلاستیک، عطرو، صابونونو، رنګونو، د پلاستیک د بیلابیلو ډولونو، کیمیایي صنایعو، ماشین الاتو او نورو وسایلو ضروریاتو لکه مصنوعي ربړو، درملو، مصنوعي سرې، حشره وژونکو او د مینځلو په موادو کې کار اخېستل کیږي.



### د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي د لوست د متن او شکلونو په کتنه دې په نړۍ کې د نفتو لوی تولیدوونکي هېوادونه یاد داشت او په نقشه کې دې وښیي.



### پوښتنې:

۱ ـ د نفتو د پیداکیدو څرنګوالی واضح کړئ.

۲ـ ولې د اروپا د نفتو صنعت په چټکۍ سره پرمخ ولاړ؟ علت یې توضیح کړئ.

۳ـ د اسیا د لوېې وچې د نفتو د تولید د مهمو مرکزونو نوم واخلئ.

٤ـ په لاتینه امریکا کې په کومو هېوادونو کې د نفتو زیرمې شته؟ نوم یې واخلئ.

له سم ځوابه په خپلو کتابچو کې کرښه تاو کړئ:

۵ـ د نفتو لوی صادروونکي:

الف. عربي متحده امارات ب. عربستان ج. قطر د. کویټ.

٦ ـ د افریقا دوه هېوادونه چې د نړۍ د نفتو لوی تولیدوونکي دي دادي:

الف. لیبیا، الجزایر ب. لیبیا، نایجریا ج. کانګو د. یوهم نه



### له ټولګي څخه بهر فعالیت:

په لاندې جدول کې د نفتو تولیدوونکي هېوادونه په بیلابیلو براعظمونو کې په ترتیب سره په خپلو کتابچو کې ولیکئ او په راتلونکي لوست کې یې وړاندې کړئ.

| امریکا | افریقا | اروپا | اسیا |
|---|---|---|---|
| د امریکا متحده ایالات | | | |
| | | | |
| | | | |

## ج ـ طبيعي ګاز



۷۷- شکل: یوه طبیعی ګاز سیمه د سوځېدو پروخت کې

د طبيعي ګازو زېرمې د نړۍ په کومو برخو کې دي؟

هغه ګازونه چې په طبيعي بڼه تر ځمکې لاندې په ژورو برخو کې دي، اکثراً له نفتو سره ګډ دي، خو ځینې وخت په جلا ډول هم موندل کېږي. دغه توکي د ډېرو لويو ژويو له فوسيلونو څخه چې ميليونونه کاله مخکې تر رسوبي طبقو لاندې راغلي او د زيات فشار او تودوخې له امله د هوا په نشتوالي کې په اوږده موده کې د بڼې بدلون سره مخامخ شوي او په ګاز بدل شوي دي.

طبيعي ګاز له چاڼ کولو څخه وروسته د سون او د تودوخې د توليد لپاره کارول کېږي او همدارنګه په خام ډول په پتروشيمي کارخانو کې په يو شمېر نورو ډول ډول موادو باندې اړول کيږي. د طبيعي ګازو منابع اکثرا د نفتي زيرمو څخه پورته طبقه کې وي. د بيلګې په توګه کله: چې د نفتو څاګانې کيندل کېږي، له نفتو څخه مخکې ګاز او بيا وروسته نفت راوځي.

په هغو ځايونو کې چې هلته د طبيعي ګازو زېرمې وي، هلته طبيعي ګاز د استحصال له مرکزونو څخه د استهلاک او لګښت ځايونو ته په ځانګړو نل ليکو کې ليږدوي.

طبیعي ګاز د انرژۍ د تولید یوه ډېره ښه سرچینه ده له هغو څخه د یوې مهمې او ارزښتمنې صنعتي او اقتصادي مادې په توګه کار اخېستل کیږي، نو له همدې امله په ټوله نړۍ کې له هغو څخه استفاده ورځ په ورځ په چټکۍ سره مخ په زیاتیدو ده. نن ورځ طبیعي ګاز یوه حیاتي ماده بلل شوې، نه یوازې دا چې د انرژۍ د تولید لپاره، بلکې د تودوخې، رڼا او پخلي لپاره هم ورڅخه کار اخلي او د ګڼ شمېر کیمیاوي مرکبونو په جوړولو کې ورڅخه کار اخېستل کیږي.

د ګازونو د تولید مهم مرکزونه د نړۍ په لاندېنیو سیمو کې دي:

آسیایي روسیه، قطر، سعودي عربستان، عربي متحده اماراتونه، ایران، افغانستان، ازبکستان او ترکمنستان.

روسیه هغه لومړنی هېواد دی چې د طبیعي ګازونو په تولید کې مهمه ونډه لري. ددغه هېواد د طبیعي ګازونو لوېې سیمې د والګا د سیند شاوخوا، ساراتوف او مسکو کې دي. روسیه د ټولې نړۍ په سلوکې ۳۳ طبیعي ګاز لري.

- د امریکا په لویه وچه کې د امریکې متحده ایالتونه او کاناډا د طبیعي ګازونو زیرمې لري.

د امریکا متحده ایالتونه په نړۍ کې د نفتو لوی تولیدوونکی او مصرفوونکی هېواد بلل کېږي. د تکزاس او نیویارک ترمنځ د ګازونو لیږدولو نل لیکه د امریکې د متحده ایالتونو د ګازونو ډېره مهمه نل لیکه ده. همدارنګه د امریکې متحده ایالتونو د ګازونو د تولیداتو له نیمایي څخه زیاته برخه په تولیدي سیمو کې لګول کیږي، پاتې نورو څخه د امریکې په نورو سیمو کې کار اخېستل کیږي.

- په کاناډا کې د طبیعي ګازونو نل لیکه له البرتا (د کاناډا لویدیځ) او شاوخوا برخو څخه یې هغو سیموته غځول شوې چې هلته کار ورڅخه اخېستل کیږي.

د امریکا متحده ایالتونو او کاناډا څخه وروسته وینزویلا د طبیعي ګازونو یو لوی تولیدوونکی هېواد دی، خو له دې امله چې تولیدي مرکزونه یې د سوداګرۍ له بازارونو څخه لرې دي، د هغو ډېره لږه اندازه بهرته صادریږي له پاتې نورو څخه د هېواد دننه د نفتو د زیرمو د فشار د تولید لپاره کار اخېستل کیږي.

- په اروپا کې د ایټالیا د ګازونو تولیدات د پرمختګ په حال کې دي، د ایټالیا لږه اندازه تولیدي ګاز د نل لیکو له لارې د فرانسې د تولوز او بوردو ښارونو ته لیږدول کیږي.
- په فرانسه کې طبیعي ګاز ددغه هېواد په جنوب لویدیځ د لاک Lacq په سیمه کې تولیدیږي. ددغې سیمې ګاز دومره زیات ګوګړ، (سلفر) او لوړه تودوخه لري چې پولادي نل لیکې یې د لیږدولو ځواک نه لري.

په دې ډول سیمو کې باید د ګازونو نل لیکه له یو ځانګړي الیاژ څخه جوړه شي چې پوره کلکې وي او د ګازونو په لیږدولو کې ستونزې رامنځ ته نه کړي.

د ګازونو مهم واردوونکي هېوادونه دادي: ایټالیا، فرانسه، جاپان او ارجنټاین.

د ګازونو د لیږدولو په برخه کې مهمه موضوع له منځني ختیځ څخه لویدیځې اروپا ته د هغو لیږدول دي.

لویدیځه اروپا په زیاته کچه طبیعي ګازوته اړتیا لري چې غواړي د وینزویلا او د فارس د خلیج د شاوخوا سیمو له ګازو څخه کار واخلي، خو لویه ستونزه په ارزانه توګه مصرف کوونکو سیموته د هغو لیږدول دي.

د سمندر له لارې ګاز په هغو بېړیو کې چې د همدې لپاره جوړې شوي له منځني ختیځ څخه اروپا ته لیږدول کیږي، خو غوره لارې یې هغه نل لیکې دي چې لوی قطر ولري او د منځني ختیځ اضافي ګاز به د ترکیې، یونان، یوګوسلاویا، اتریش او آلمان له لارې لویدیځې اروپا ته ولیږدول شي، ددې ترڅنګ له دغو هېوادونو څخه به د تېریدو پر مهال د هغوی اړتیا هم بشپړه شي. البته تر اوسه پورې اروپایي هېوادونه ددې اندازې ګازو د چمتو کولو وسایل نه لري، له دې پرته د هغو ټولو هېوادونو موافقه هم نه ده ترلاسه شوې چې دغه نل لیکه به ورڅخه تېریږي. په دې وروستیو کلونو کې د یو شمېر آسیایي او نوو آزادو شوو هېوادونو لکه ترکمنستان او د لویدیځې اروپا هېوادونو ترمنځ یو شمېر تړونونه شوي چې طبیعي ګاز به په نل لیکو کې هغوی ته صادریږي.



**د ټولګي دننه فعالیت:**

زده کوونکي دې په مناسبو ډلووویشل شي، د لوست د متن او د طبیعي ګازونو د نقشې په استفادې سره دې لاندې فعالیت ترسره او د خپل فعالیت پایله دې نوروته هم ووایي.

لومړۍ ډله دې د آسیا د طبیعي ګازونو تولیدوونکي هېوادونه په نقشې باندې وښیي او د هغو د تولید اندازه دې په ۲۰۰۰ م کال کې ولیکي.

دویمه ډله دې: د امریکې د لویې وچې د طبیعي ګازونو تولیدي سیمې د نقشې پرمخ وښیي او دهغو د تولید اندازه دې په ۲۰۰۰ م کال کې ولیکي.

دریمه ډله دې: د اروپا د طبیعي ګازونو تولیدي سیمې د نقشې پرمخ وښیي او دهغو د تولید اندازه دې په ۲۰۰۰ م کال کې ولیکي.



**پوښتنې:**

سم ځواب په نښه کړئ:

۱ـ د امریکې د متحده ایالتونو د دوو ایالتونو ترمنځ تر ټولو اوږده نل لیکه کومه یوه ده؟

الف. د تکزاس او نیویارک تر منځ ب. د تکزاس او کلیفورنیا ترمنځ

ج. د نیویارک او کلورادو ترمنځ د. یو هم نه

۲ـ د نړۍ تر ټولو لوی د طبیعي ګازونو تولیدوونکی او مصرف کوونکی هېواد کوم دی؟

الف. روسیه ب. د امریکې متحده ایالات ج. کاناډاد. وینزویلا

۳ـ د ګاز هغه سلنه (فیصدي) چې روسیه یې لري څومره ده؟

الف. په سلوکې ٤۰ ب. په سلوکې ۳۳ ج. په سلوکې ۵۰

د. درې واړه ځوابونه سم دي

٤ـ د آسیا د طبیعي ګازونو د مهمو مرکزونو نومونه واخلئ.



**له ټولګي څخه بهر فعالیت:**

د نړۍ د نفتو او ګازونو لوستونه ولولئ او د هغو مهم ټکي په راتلونکي لوست کې خپلو ټولګیوالوته ووایئ.

## څلويښتم لوست

# د. په نړۍ کې د ډبرو سکاره



۷۸- شکل د المان دهېواد د رور(Ruhr) صنعتي سيمه، چې ۳۰٪ سکاره او ۲۰٪ د اروپا فولاد په دې فابريکه کې توليدېږي.

### د ډبرو سکاره د نړۍ په کومو برخو کې شته دي؟

تاسې په دويم څپرکي کې د افغانستان د ډبرو سکرو او د هغو د سيمو په هکله معلومات ترلاسه کړل. په دغه درس کې به د نړۍ د ډبرو سکرو په هکله او د هغو د سيمو په هکله معلومات ترلاسه کړئ.

د ډبرو سکاره د ونو او بوټو ډبرينې پاتې شونې دي چې د جيولوجيکي دورو له بدلونونو سره يوځای د خاورو تر رسوباتو او طبقو لاندې شوي اود اوږدې مودې په تېريدو سره يې د ډېر فشار او لوړې تودوخې له امله بڼه بدله او په ډبرو سکرو بدل شوي دي.

د ډبرو سکاره د نړۍ د انرژۍ توليدوونکو مهمو سرچينو څخه شمېرل کيږي، انسانانو له ډېر پخوا څخه د ډبرو سکرو له انرژۍ څه کار اخېست، خو د ډبرو سکرو اقتصادي ارزښت له اتلسمې پېړۍ څخه وروسته کله چې د بړاس انرژي په صنايعو کې رواج شوه، اوچت شو او د اوسني عصر په صنعت کې هم لوی اهميت لري. د ډبرو سکاره بيلابيل ډولونه لري چې دلته يې ځينې ډولونه تر بحث لاندې نيسو:

**الف. وچ سکاره يا انتراسيت** Anthracite:

دغه ډول د ډبرو سکاره تور يا ايره رنګه تور وي او په سلوکې ۸۷ څخه تر ۹۴ پورې کاربن لري. ډېره تودوخه لري او د لوګي او ايرو اندازه يې کمه وي، له همدې امله د برېښنا په توليد او د ماشينونو په ګرځيدو کې ورڅخه کار اخېستل کيږي.

### ب. قیري د ډبرو سکاره Bituminous Coal :

قیري یا تور د ډبرو سکاره د کوک د جوړولو لپاره ډېر ښه ډول سکاره دي. کوک هغه سکاره دي چې پرته له لوګي څخه سوځي او ډېره تودوخه تولیدوي. په پرمختللو هېوادونو کې قیري سکاره د نړۍ د ډبرو سکرو په سلوکې له ۵۰ برخوڅخه زیات دي. په صنعت کې ډېر لګول کیږي او د کاربن اندازه یې په سلوکې ۸ ٤ ده.

### ج. محجر یا لګنیت Lignite سکاره:

دغه سکاره د نورو په پرتله سپک دي، دا هغه ډول د بوټو او د لرګیو پاتې شونې دي چې په بشپړ ډول لاپه کاربن باندې نه دی اوښتي، رطوبت یې زیات او تودوخه یې لږه وي. دغه ډول سکاره چې خام هم بلل کیږي ډېر ښه اوژر سوځي، له دې امله چې رنګ یې ژیړ یا خرمایي دی، نو د قهوه یي سکرو په نوم هم یادیږي. په سلوکې ۱۵ هغه سکاره چې په نړۍ کې را ایستل کیږي لګنیت دي.

### د . د تورب Taurbe د ډبرو سکاره:

د ډبرو دغه ډول سکاره قهوه یي یا خامو سکرو ته ډېر ورته دي، تودوخه یې لږه او د عمر له پلوه خام او تازه ښکاري.

د نړۍ د ډبرو سکرو د تولید مهم مرکزونه دادي:

### ۱. اروپا:

د اروپا د ډبرو سکرو ټولې زیرمې د فرانسې په شمال، بلژیک، هالنډ، آلمان، انګلستان او پولنډ کې دي. ددغو سیمو زیرمې په عمومي توګه له پخوا راهیسې ایستل شوي دي او د ډبرو سکرو د رګونو د پای ته رسیدو نښې له ورایه څرګندې شوې دي. روسیه په ټوله نړۍ کې د ډبرو سکرو لوی تولیدوونکی هېواد دی چې د ډبرو سکرو زیرمې یې له کوزنتسک یا کوزباس څخه ترلاسه کیږي، له دې پرته له یو شمېر نورو سیمو لکه کار ګنده (د بالکاش د جهیل شمال ته) او مسکوته نژدې د توله Tula له سیمو څخه هم د ډبرو سکاره ترلاسه کیږي.

په آلمان کې د هغه هېواد د ډبرو سکرو د ایستلو سیمې دور، لینت او د سار سیمه ده چې د رور سیمه یې په ټوله لویدیځه اروپا کې د ډبرو سکرو مهمه سیمه ده.

د انګلستان د ډبرو سکرو د ایستلو سیمې دادي: سکاټلنډ، مندلندز، جنوبي ویلز او نیوکاستل. یو وخت د انګلستان د ډبرو سکاره د نړۍ د صنایعو لپاره د انرژۍ د تولید لویه منبع ګڼل کیده، خو په اوسني وخت کې د انګلستان د ډبرو سکرو پیریدلوته تقاضا ډېره کمه شوې ده، دا ځکه چې زیاتره هېوادونه له خپلو کانونو څخه کار اخلي. د ډبرو سکرو د کانونو ایستل په فرانسې، المان او دامریکا متحده ایالاتو کې په ماشینونو سره ترسره کیږي، نو ځکه د انګلستان د ډبرو سکرو خپل پخوانی ارزښت له لاسه ورکړی دی.

## ۲. شمالي امریکا:

په دغه سیمه کې د ډبرو سکرو د کانونو پراختیا ډیره زیاته ده. په امریکې کې د ډبرو سکرو د ایستلو لوېې سیمې شته، خو تر اوسه پورې له ټولو سیمو څخه را ایستل شوي نه دي. د امریکا متحده ایالتونه د ډبرو سکرو د نړۍ تر ټولو لویې زیرمې لري او د هغو یو لوی صادروونکی هېواد دی.
د شمالي امریکې د ډبرو سکرو د ترلاسه کولو ډیر لوی صنایع په لاندېنیو ښارونو کې دي:
لویدیځه ویرجینیا، پنسلوانیا، الینایز، کنتاکي، اوهایو، اندیانا، کلورادو او نور.

## ۳. آسیا:

ددغې لویې وچې د ډبرو سکرو زیرمې ډیرې لرې پېژندل شوي دي. کوم څه چې په ډاډ سره ټاکل شوي دي، هغه کانونه دي چې د سایبریا د اوسپنې د پټلۍ په اوږدوکې او ددغو سیمو په غرونو کې پېژندل شوي دي. په جاپان، ویتنام، چین، هند، ایران او افغانستان کې هم د ډبرو سکرو کانونه شته.
چین په اوسني وخت کې د ډبرو سکرو د ایستلو ډیره لویه سیمه ده چې له هوانگهو څخه نیولې د منچوریا تر جنوب پورې دغه ډول کانونه ایستل کیږي. جاپان هم یوه اندازه د ډبرو سکاره لري چې د اوسپنې د ویلې کولو په کارخانو کې ورڅخه کار اخېستل کیږي.

## ۴. په جنوبي نیمه کره کې د ډبرو سکرو سرچینې:

که چیرې د جنوبي نیمې کرې د ډبرو سکرو کانونه د شمال نیمې کرې سره پرتله کړو، په جنوبي نیمه کره کې دغه سرچینې لږې دي، داسې چې د جنوبي د ټولې نیمې کرې د ډبرو سکرو کانونه د نړۍ د را ایستل شوو ډبرو سکرو په سلو کې پنځه برخې جوړوي. ددغو منابعو مهمه برخه په استرالیا کې ده.
همدارنگه د افریقې په جنوب ختیځ او په جنوبي امریکا کې، په تېره بیا په چیلي کې د ډبرو سکاره پېژندل شوي دي د لومړۍ نړیوالې جگړې څخه مخکې د ډبرو سکرو مهم صادروونکي هېوادونه المان او انگلستان وو، خو وروسته تر هغه د ډبرو سکرو د صادرولو په بازارونو کې بدلونونه او انقلابونه راغلل او د دوی حالت یې بدل کړ. شمېرې ښکاره کوي چې لوی تولیدوونکي اساساً د ډبرو سکاره ځان ته تولیدوي، صادرولو ته یې په دویمه درجه اهمیت ورکوي.
د بیلگې په توگه: د امریکې متحده ایالات خپل د ډبرو سکاره لویدیځې اروپا او کاناډا ته صادروي همدارنگه پولنډ خپل د ډبرو سکاره روسیې، چکوسلواکیا، سویډن او ایټالیا ته صادروي. استرالیا ډیره برخه د ډبروسکاره جاپان او جنوبي کوریا ته صادروي. آلمان خپل د ډبرو سکاره یو شمېر اروپایي هېوادونو ته لیږي. فرانسه خپله زیاته اندازه د ډبرو سکاره د المان د رور او سار له سیمو څخه واردوي.

د ډبرو سکاره په ډېرو زیاتو ځایونو کې کارول کیږي. په اوسني وخت کې نه یوازې داچې د برېښنا په فابریکو کې، د کورونو په تودولو او پخلي کې او په اورګاډو کې کارول کیږي، بلکې په کیمیاوي صنایعو لکه نیلون، پلاستیك، عطر، درملو او د ترکیبي شیانو په جوړولو کې هم ورڅخه کار اخېستل کیږي. هغه دویمه درجه محصولات چې ورڅخه جوړیږي لکه قیر، رنګه مواد، سلفاید، امونیا، مصنوعي نفت، مصنوعي ربړ او نور دي.

**د ټولګي دننه فعالیت**:

زده کوونکي دې درې ډلې شي د لوست په کتاب کې دې د نړۍ د ډبرو سکرو له نقشې څخه په استفادې سره هغه سیمې چې د ډبرو سکرو زیرمې لري په نقشه کې په نښه کړي.

- لومړۍ ډله دې د آسیا د ډبرو سکرو د سیمو نومونه واخلي او په نقشه باندې دې وښیي.
- دویمه ډله دې د اروپا د ډبرو سکرو سیمې په نقشه باندې وښیي.
- دریمه ډله دې د ډبرو سکرو د ترلاسه کولو هغه لویې سیمې چې په شمالي امریکا کې دي، په نقشه باندې وښیي.

**پوښتنې**:

په خپلو کتابچو کې د سم ځواب له توري کرۍ راتاو کړئ.

۱- په نړۍ کې د ډبرو سکرو د انرژۍ ډېر لوی تولیدوونکی:

الف. امریکا متحده ایالتونه ب. روسیه ج. جاپان د. هند دی

۲- له لومړۍ نړیوالې جګړې څخه مخکې د ډبرو سکرو صادروونکي دا وو:

الف. انګلستان او المان ب. فرانسه او المان ج. سویډن او ایټالیا د. روسیه او کاناډا

۳- هغه دوه هېوادونه چې استرالیا خپل د ډبرو سکاره ورته صادروي:

الف. پولنډ، ایټالیا ب. جاپان او جنوبي کوریا ج. روسیه او متحده ایالات

د. سویډن او چک دي

٤- د المان د ډبرو سکرو د سیمو نوم واخلئ، ووایئ چې کومه سیمه یې زیات اهمیت لري؟

٥- د کوك سکاره د نورو پرتله څه ښیګڼه لري، توضیح یې کړئ.

٦- د ډبرو سکرو د کارولو ځایونه ولیکئ.

۷- په اوسني وخت کې چین خپل د ډبرو سکاره د خپل هېواد له کومو سیمو څخه ترلاسه کوي؟

**له ټولګي څخه بهر فعالیت**:

د لوست له متن څخه په استفادې سره د نړۍ د ډبرو سکرو د حوزو او مهمو مرکزونو په هکله په راتلونکي ساعت کې خپلو ټولګیوالوته معلومات ورکړئ.

يو څلويښتم لوست

## ۳،۵ د انرژۍ د منابعو جغرافيايي وېش




۷۹- شکل د نړۍ د نفتو زيرمې

د انرژۍ منابع د نړۍ په کومو سيمو کې دي؟

په ټوله نړۍ کې د انرژۍ منابع يوشان او په برابر ډول نه دي، بلکې د نړۍ په بيلابيلو ځايونو کې په شيندلي ډول موندل کيږي. د نړۍ په ډيرو برخو کې د انرژي سرچينې شته چې انسانانو له ډير پخوا څخه له هغو څخه کار اخيست. هغه هېوادونه چې د انرژۍ منابع لکه د ډبرو سکاره، نفت، گاز او اوبه په نړۍ کې په پراگنده ډول سره لري. د ډبرو سکرو زيرمې په نړۍ کې د ځينو لويو وچو، لکه: اروپا، آسيا، امريکا او جنوبي نيمې کرې په ځينو سيمو کېښشلي دي لکه څنگه چې په اروپا کې د فرانسې، بلژيک، هالنډ، المان او پولنډ په هېوادونو کې د ډبرو سکرو زيرمې شته.

- په آسيا کې په جاپان، د ويتنام په شمال،چين، هند، ايران او همدارنگه د سايبريا د کرښې په اوږدو او د هغې په غرونو کې د ډبرو سکرو زيرمې موندل کيږي.

په جنوبي نيمه کره کې د ډبرو سکرو منابع د شمالي نيمې کرې پرتله لږې دي. يوازې د ټولې نړۍ د را ايستل شوو زيرمو په سلوکې پنځه برخې جوړوي.

همدارنگه په نورو لويو وچو لکه استراليا، د افريقې په جنوب ختيځ او جنوبي امريکا کې په تېره بيا په چلي کې د ډبرو سکاره موندل شوي دي.

په شمالي امريکا او د امريکې په متحده ايالتونو کې د ډبرو سکرو لويې زيرمې شته. دامريکا متحده ايالتونه د ډبرو سکرو مهم توليدوونکي دي.

نفت د اروپا په بلژيک، انگلستان، المان، فرانسې، ايټاليا اوهالنډ کې شته.

ـ په آسیا کې د نفتو زیرمې په روسیه، منځني ختیځ، عراق، ایران، سعودي عربستان، عربي متحده اماراتو، قطر او کویټ کې متمرکز دي.

ـ د امریکا په لویه وچه کې د امریکې متحده ایالات په نړۍ کې د نفتو یو مهم تولیدوونکی هېواد دی، خو بیاهم د لګښت څه ناڅه نیمایي نفت له بهر څخه واردوي.

مکسیکو هم د نفتو تولیدوونکی هېواد دی چې د خپلو تولیداتوزیاته برخه صادروي.

په جنوبي امریکا کې وینزویلا او اکوادور د نفتو زیرمې لري چې دواړه هېوادونه دنفتو د صادراتو له مخې زیات اهمیت لري.

په نړۍ کې دګازونو جغرافیایي وېش: په آسیا کې روسیه او یو شمېر نوي خپلواک شوي هېوادونه لکه ترکمنستان په نړۍ کې د ګازونو تر ټولو زیاتې زیرمې لري. ایران هم د طبیعي ګازونو په لرلو سره د نړۍ یو بډای هېواد دی.

په امریکا کې په متحده ایالاتو او کاناډا کې زیاته اندازه طبیعي ګاز تولیدیږي. د امریکا متحده ایالات د طبیعي ګازونو یو مهم تولیدوونکی او مصرفوونکی هېواد دی. د نفتو صادروونکي هېوادونه دګازو زیرمې هم لري. وینزویلا په نړۍ کې د طبیعي ګازونو لوی تولیدوونکی هېواد دی.

**په نړۍ کې د اوبو جغرافیایي وېش**: په هغو پنځو ناحیو کې چې د اوبو د برېښنا ډېر پرمختللی ځواک لري دادي:

- په اروپا کې لویدیځې جنوبي او مرکزي سیمې
- دامریکا په لویه وچه کې د امریکې متحده ایالات
- په آسیا کې جاپان
- یو شمېر نورې هغه سیمې چې له دې پلوه زیات اهمیت لري د روسیې اروپایي برخې او د برازیل ختیځې غرنۍ سیمې دي.



۸۰ - شکل: د نفتو د تصفیه کولو دستګاه



### د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې څلور ډلې شي:

لومړۍ ډله دې دنړۍ د ډبرو سکرو جغرافیايي ویش او هغه سیمې چې هلته د ډبرو سکرو زیرمې شته په نقشه کې وښیي.

دویمه ډله دې په نړۍ کې د نفتو جغرافیايي ویش او هغه سیمې چې هلته د نفتو زیرمې شته د نقشې پرمخ وښیي.

دریمه ډله به دګازونو جغرافیايي ویش اوهغه هېوادونه چې هلته دګازونو زیاتې زیرمې شته په نقشه کې وښیي.

څلورمه ډله دې د نړۍ هغه سیمې چې د اوبو د برېښنا څواک په هغو کې پرمخ تللی په نقشه کې وښیي.



### پوښتنې:

په خپلو کتابچو کې سم ځوابونه په نښه کړئ.

۱. په نړۍ کې د نفتو تولیدوونکی او صادروونکی آسیايي لومړنی هېواد:

الف. قطر   ب. ایران   ج. عراق   د. سعودي عربستان دی.

۲. په جنوبي امریکا کې دنفتو دوه تولیدوونکي هېوادونه:

الف. وینزویلا او اکوادور   ب. کاناډا او متحده ایالات   ج. مکسیکو او برازیل   د. یوهم نه دی.

۳. د اروپا دهغو سیمو نوم واخلئ چې هلته د اوبو د برېښنا ډېره انرژي وي.

٤. په اسیا کې کومې سیمې د طبیعي ګازو بډایې زیرمې لري؟

۵. دا روپا د ډبرو سکرو منابع په کومو هېوادونو کې دي، نوم یې واخلئ.



### له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د لوست د متن له مخې لاندې جدول چې په هغه کې د نړۍ د انرژۍ بېلا بېلې منابعوېشل شوي دي په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

| هېوادونه | اروپا | آسیا | افریقا | امریکا | استرالیا |
|---|---|---|---|---|---|
| د ډبرو سکاره | فرانسه ، بلژیک، هالنډ، المان، انګلستان، پولنډ | | | | |
| نفت | | | | | |
| ګاز | | | | | |
| اوبه | | | | | |

## شپږم څپرکی
# کانونه او صنایع

### په دې څپرکي کې لولو:

- په نړۍ کې کانونه او د هغو اهمیت،
- د کانونو د اېستلو لارې چارې
- په نړۍ کې صنایع، د هغو ارزښت او ډولونه
- شمالي امریکا
- اروپا
- د آسیا ختیځ او سهیل ختیځ

ـ د صنایعو ډولونه
ـ سپک صنایع
ـ درانه صنایع

- د صنایعو په پرمختګ کې اغېزمن لاملونه

ـ طبیعي لاملونه
ـ بشري لاملونه

### د څپرکي عمومي موخې:

**زده کوونکي به د دغه څپرکي په لوستلو سره لاندېنیو پوهنیزو موخوته ورسیږي:**

- د نړۍ په اقتصاد کې به د کانونو پر اهمیت پوه شي.
- د کانونو د را ایستلو په نوو لارو چارو به پوه شي.
- د صنایعو په اقتصادي اهمیت به پوه شي.
- د نړۍ مهم صنایع به وپیژني.
- د صنایعو په پرمختیا کې اغیزمن لاملونه به وپیژني.

**زده کوونکي به د دغه څپرکي په لوستلو سره لاندېنیو مهارتي هدفونوته ورسیږي:**

- د نړۍ په کچه به د کانونو اقتصادي اهمیت بیان کړي.
- د کانونو د را ایستلو نوې لارې چارې به توضیح کړي.
- د صنایعو اقتصادي اهمیت به بیان کړي.
- د نړۍ مهم صنایع او د هغو اقتصادي ارزښت به بیان کړي.
- د صنایعو د پرمختیا مهم عوامل به توضیح کړي.
- د نقشې پر مخ به صنعتي مهم هېوادونه او سیمې وښیي.

## ۱،۶ په نړۍ کې کانونه او د هغو اهمیت




د نړۍ خلك له کومو کاني توکو څخه کار اخلي؟

تاسې د افغانستان په برخه کې د کانونو او د هغو د اهمیت په هکله معلومات ترلاسه کړل. په دغه لوست کې به په نړۍ کې د کانونو او د هغو له اهمیت سره آشنا شئ.

کانونه، نه یوازې زموږ په هېواد، بلکې د نړۍ په ټولو هېوادونو کې د بشري ټولنو د هوساینې او اقتصادي پرمختګ لپاره ځانګړی ارزښت لري.

د نړۍ پرمختللي هېوادونه له بیلابیلو کاني توکو لکه: سون توکو، ودانیزو توکو، منرالونو، بیلابیلو فلزاتو او نورو څخه په ګټوره توګه کار اخلي چې د ځینو په هکله به يې خبرې وکړو:

• د هغو کاني توکو په ډله کې چې د انسان ژوند ته يې پوره بدلون ورکړ او د هېوادونو د ټولنیزې او اقتصادي پرمختیا په برخه کې لوړ ارزښت لري، یوهم د سون توکي دي لکه نفت، ګاز او د ډبرو سکاره.

ناچاڼ شوي نفت هېڅکله د اور اخیستو وړ نه وي، خو په پټرولي او کیمیایي تاسیساتو کې چاڼ او بیا ورڅخه د سون وړ توکي او نور بیلابیل مصنوعي مواد جوړېږي.

ګازهم د سون یو مهم توکی دی چې د ځمکې په کانونو کې په اوبلن او ګاز ډول شته.

---

یادونه: ګاز وروسته تر چاڼ کولو څخه کله چې په تانکر یا بالون کې په فشار سره اچول کیږي، نو مایع ګاز بلل کیږي، خو د کارولو پر مهال بېرته په ګاز بدلیږي.

اوبلن گاز معمولاً د نفتو له طبقې څخه پورته او له هغه څخه نن ورځ ډېر کار اخېستل کیږي.

د ډبرو سکاره هم یوه د انرژۍ مهمه سرچینه او داسې د سون ماده ده چې په نړۍ کې په پراخه اندازه سوځول کیږي.

د ډبرو سکاره چې په نړۍ کې د انرژۍ د تولید لویه سرچینه ده، د برېښنا په تولید، د کورونو په تودولو، پخلي، د اورګاډو په کار اخېستلو او نورو ځایونو کې ورڅخه کار اخېستل کیږي او همدارنګه په کیمیایي صنایعو لکه د نیلون په جوړولو، پلاستیک جوړولو او نورو چاروکې هم کار ورکوي. هغه هېوادونه چې په هغو کې د ډبرو سکاره ډېر کارول کیږي او لوېې زیرمې لري ددې درس په نقشه کې ښودل شوي دي.

یو بل ډول د سون توکي چې د نړۍ ځینو پرمختللو هېوادونو له هغو څخه استفاده کړې ده، د سون هسته یي توکي دي چې له هغو څخه د کیمیایي عکس العمل پربنسټ نه، بلکې د هسته یي عکس العمل پربنسټ انرژي ترلاسه کیږي. د هغو ډېره ښه بیلګه یورانیم او پلوتونیم دي.

د یادونې وړ ده چې د سون توکي د انرژۍ یوه ډېره مهمه منبع ده او له انرژۍ څخه یې کولای شو د رڼا، تودوخې او ګرځوونکي ځواک په توګه کار واخلو.

• فلزات د کاني توکو یوه بله برخه ده چې موږ دافغانستان په برخه کې هم د هغو ځینې ډولونه وپیژندل.

کله چې د لومړنیو وسایلو پرځای فلزي سامانونه او وسایل جوړ شول، انسان د تمدن په ډګر کې ګام کیښود، ددې معنا داده: کله چې انسان د فلز په کلکوالي، د بڼې د بدلون د وړتیا او د ټینګوالي په ارزښت باندې و پوهید، نو له فلز څخه یې د جګړې او ښکار د وسایلو په جوړولو، د بیړۍ چلولو او ودانیو په صنعت او د نورو وسایلو په جوړولو کې کار واخېست او خپل ځواک یې په طبیعت باندې په واکمن کیدو کې څو ځله اوچت کړ، په تېره بیا له صنعتي انقلاب څخه وروسته یې له هغه څخه زیات کار اخېستل پیل کړل، په حقیقت کې د فلزاتو صنایعو د نورو صنایعو د پرمختیا لاره هواره کړه. باید وویل شي چې د اقتصادي فعالیتونو، سوداګرۍ، تخنیک او نورو چارو پرمختګ تر ډېره بریده پورې د فلزي صنایعو په پرمختګ پورې تړلی دی په تېره بیا په ټولو فلزاتو کې اوسپنه او المونیم ډېر اوچت ارزښت لري. انسانانو له پخوا څخه له اوسپنې څخه کار اخېستی دی او له هغې څخه یې د خپلې اړتیا وړ وسایل جوړول، مس هم له پخوا وختونو استعمالیدل او ګرانبیه فلزات لکه سره زر او سپین زر هم ځانګړی ارزښت لري.

په اوسني وخت کې له فلزاتو څخه په تېره بيا له اوسپنې څخه زيات کار اخېستل کيږي او د اوسپنې د ويلې کولو په بټيو کې د ډيرې زياتې تودوخې په ورکولو سره ويلې او له هغې څخه بيلابيل فلزي وسايل، په تېره بيا پولاد جوړوي.




۸۲- شکل د ډبرو سکرو د جوړيدو د بيلابيلو پړاوونو انځور



## د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په وړو ډلو وویشل شي، د ډبرو د سکرو او لګنیت نقشه دې وګوري لاندېنیو پوښتنو ته دې ځواب ووایي:

۱ـ چین په ۲۰۰٤ م کال کې څو میلیونه متریک ټنه د ډبرو سکرو تولیدات لرل؟

۲ـ په همدې کال کې وروسته تر چین څخه کوم بل هېواد د ډبرو سکرو زیات تولید درلود؟

۳ـ د دریو نورو هغو هېوادونو نومونه په ترتیب سره واخلئ چې د ډبروسکرو لوړ تولید یې درلود.

٤ـ د همدغې نقشې له مخې په نړۍ کې کوم هېواد په پورتني کال کې د قهوه یي رنګه ډبرو سکرو (لګنیت) ډېر زیات تولیدات لري؟



## پوښتنې:

۱ـ څو ډوله کاني توکي پېژنئ، نوم یې واخلئ.

۲ـ فلزات د خلکو د ژوند په ښه کولو او د هېوادونو د اقتصادي ودې په اوچتولو کې څه اهمیت لري؟ بیان یې کړئ.

۳ـ د سون توکي، په تېره بیا نفت، ګاز او د ډبرو سکاره د نړۍ په کچه څه اهمیت لري؟ توضیح یې کړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

دغه لوست او په افغانستان کې د کانونو او د هغو د اهمیت لوست ولولئ او په راتلونکي لوست کې یې ورته والی، توپیرونه او مهم ټکي بیان کړئ.

# ۲،۶ د کانونو د ايستلو لارې - چارې



۸۳- شکل  د نړۍ د سرو زرو تر ټولو د لوی کان انځور چې په پاپوانيوګيني کې موقعيت لري

د کانونو په ايستلو کې کوم لاملونه اغيزمن دي؟

د کاني توکو را ايستل او له هغو څخه کار اخېستل د هغو له اندازې، جغرافيايي موقعيت، ارزښت د راټوليدو د څرنګوالي او جيولوجيکي حالت سره سيده اړيکې لري.
همدارنګه د هېوادونو سياسي، ټولنيز او اقتصادي لاملونه هم د هغو په را ايستلو کې اغېزه لري.
په مجموع کې د کاني توکو را ايستل او له هغو څخه کار اخېستل بيلابيل پړاوونه لري، له پلټنې او جيولوجيکي څېړنو څخه نيولي د زيرمو تر کميت، کيفيت، تثبيت او ارزښت تر ټاکلو پورې بايد کار وشي. په ماشينونو برمه کول، کيندل او د توکو راټولول، د مسلکي کسانو په کار ګومارل، د ماهرو کارګرو موندل او ترپانګې اچونې، بازار موندنې، د مواصلاتو لاروچارو او ترانسپورتي اسانتياوو برابرولو پورې ټولې چارې د کانونو د را ايستلو لپاره په کار دي.
د بيلګې په توګه: د نفتو په را ايستلو کې تر هرڅه د مخه  بايد د جيولوجيکي (ځمکپوهنې) له پوهنې څخه په کار اخېستو سره د نفتو لرونکې سيمې وپيژندل شي او په هغو ځايونو کې چې دغه ډول توکي ترسترګو شي، هلته ژورې څاګانې چې ځينې وختونه يې ژوروالى زرګونه متره وي، کيندل کيږي، لکه چې دارنګه د امريکې د متحده ايالاتو د کليفورنيا په ايالت کې د ۴۵۰۰ مترو په ژور والي او په رومانيا کې د ۱۲۰۰ مترو په ژوروالي څاګانې کيندل شوي دي.
د نفتو د ترلاسه کيدو ټوله بيه په سيده توګه د څاګانو په ژورتيا، برمه کولو او له څاګانو څخه د نفتو د را ايستلو له فشار سره اړيکه لري. په هغو حوزو کې چې هلته نفت په طبيعي بڼه يا د ګازي فشار

په بڼه او يا هم د نفتو په زيرموکې د اوبو د ننوتلو له امله په خپله راوځي د هغو تمامه شوې بيه ډيره ارزانه وي.
په بيلابيلو هېوادونو کې د نفتو ايستلو او ترلاسه کولو کار بېلا بېلې بڼې لري، د بيلګې په توګه:
د امريکې په متحده ايالاتو کې له هرې څا څخه په ورځ کې په منځنۍ توګه ۱۳ بيرله نفت، په منځني ختيځ کې ۵۳۰۰ بيلره ، په وينزويلا کې ۲٤۰ او په کاناډا کې ٤٦ بيرله نفت ترلاسه کيږي. ددې لپاره چې ناخالص يا خام نفت په خالص يا چاڼ شوو نفتو واړول شي، بايد نور بيلابيل پړاوونه په چاڼخای کې وربانديې تېر شي. په همدې توګه نور تول کاني توکي بيلابيل پړاوونه تېروي او په بيلابيلو بڼو را ايستل کيږي.
دلته د ډبرو سکرو د را ايستلو يوه بيلګه هم راوړو:
په ځينې هېوادونو لکه د امريکې په متحده ايالاتو او چين کې د ډبرو سکرو زيرمې د ځمکې په ژور تل او ټيټه پوړۍ کې دي او په ځينو ځايونو کې يوه پوړۍ په بله باندې په مات شوي او نامنظم ډول باندې وي چې ددې ډول کان را ايستل په ريښتيا هم ستونزمن او زيات لګښت غواړي، خو په سکاټلند کې د ډبرو سکرو پوړۍ، د هغو پريړوالی او اوږدوالی غوره بريښي.
د ډبرو سکرو د را ايستلو لپاره معمولاً ځاګانې او سمڅې کيندل کيږي چې ځينې وختونه يې ژور والی تر ۲۰۰۰ مترو پورې رسيږي. په دغو سمڅو او ځاګانو کې کارکوونکي او د کار وسايل د کان بيلابيلو ژورو ځايونو ته په لفټ کې ورکوزيږي او بيا په همدغو لفټونو کې سکاره راباسي.



### د ټولګي دننه فعاليت:

زده کوونکي دې په ډلو وويشل شي، او د ښاغلي ښوونکي په لارښوونه به د هغو لاملونو يا عواملو په هکله چې د کانونو په را ايستلو کې اغيزه لري او هم د کانونو د را ايستلو د بيلابيلو ډولونو په هکله بحث او خبرې وکړي او د خپلو بحثونو پايله دې خپلو ټولګيوالوته وړاندې کړي.



### پوښتنې:

۱- د کاني توکو را ايستل او له هغو څخه کار اخېستل کومو شرايطو او څه شي ته اړتيا لري؟ توضيح يې کړئ.
۲- د کاني توکو را ايستل بايد کوم پړاوونه تېر کړي؟ بيان يې کړئ.



### له ټولګي څخه بهر فعاليت:

د لوست د تصويرونو، متن او نورو سرچينو په کتنه د کانونو د را ايستلو د لارو چارو په هکله خپل نظر وليکئ او په بل ساعت کې يې په ټولګي کې وواياست.

## څلور څلويښتم لوست

# په نړۍ کې صنايع، د هغو ارزښت او ډولونه يې




۸۴- شکل: تاسې څو ډوله صنايع پېژنئ او د نړۍ لويې صنعتي سيمې چيرې دي؟

لکه څرنګه چې د افغانستان په برخه کې هم ولوستل شول، صنعت يو توليدي فعاليت دی چې له خامو يا لومړنيو توکو څخه په کار ځايونو او فابريکو کې د بنې په بدلون سره صنعتي جنسونه جوړ او خام توکي د کار وړ شيانو باندې بدليږي.

د صنايعو ارزښت په دې کې دی چې د خامو او لومړنيو موادو بڼه بدلوي، د هغو ګټورتوب، کيفيت او ارزښت لوړوي. د نړۍ هغه شمېر هېوادونو چې له صنعتي انقلاب څخه وروسته يې د خپلو صنايعو ودې او پرمختيا ته کار کړی، نن ورځ د نړۍ پرمختللي هېوادونه بلل کيږي.



۸۵- شکل: د امريکې په متحده ايالاتو کې د الوتکو جوړولو د صنعت يو انځور

په تولیزه توګه د يوه صنعتي فعاليت د ترسره کولو لپاره بايد لاندېني شرايط او امکانات برابر شي:

لومړني توکي، انرژي، د ليږدولو وسايل، مواصلاتي کرښې، ځمکه، کار ځواک، پانګه، د لګښت بازار او فنونه يا مهارتونه.

همدارنګه توليد شوي اجناس چې وروسته تر توليد څخه د

انسان په واک کې ورکول کېږي دادي: الوتکې، بېړۍ، کاغذ، تلويزيون، غوړي، رخت ، موټر او په سلګونو نور.
لکه څرنګه چې په نقشه کې ښکاري د نړۍ مهمې صنعتي سيمې چې هلته ډېر صنايع رامنځ ته شوي دي دادي: شمالي امريکا، اروپا، د آسيا ختيځ او جنوب ختيځې سيمې. نوموړې سيمې دلته په لنډ ډول چې له کمي او کيفي پلوه د نړۍ بيلابيل صنعتي اجناس توليد او پوره کوي، در پېژنو:

• **شمالي امريکا**: د شمالي امريکې صنعتي سيمې د کاناډا او متحده ايالاتو په دواړو هېوادونو کې ترسترګو کېږي چې د امريکې د متحده ايالاتو صنعتي سيمې لکه څرنګه چې په نقشه کې ښکاري ددغه هېواد په شمال ختيځ کې د اپلاش له غرونو څخه پيل او تر پنځه ګونو خليجونو پورې پرتې دي.

• **اروپا**: د اروپا ډېرې مهمې صنعتي سيمې ددغې وچې (ځمکې) په لويديځ کې دي. په آلمان کې د رور ناحيه او د انګلستان، فرانسې صنعتي سيمې او د ايټاليا شمال سيمې د اروپا ډېرې مهمې صنعتي برخې دي.

• **د آسيا ختيځ او جنوب ختيځ**: د جاپان هېواد د نړۍ په دغه برخه کې تر ټولو غوره صنعتي سيمه ده. د جاپان صنعتي پټاره له توکيو څخه تر کيوشو پورې ده. همدارنګه هانګ کانګ، ماليزيا، تايوان، جنوبي کوريا او سنګاپور په دغو دوو وروستيو لسيزو کې د صنعت په برخه کې پوره پرمختګونه کړي دي او دصنعتي اجناسو صادروونکي هېوادونه ګڼل کېږي چې خپل جنسونه او مالونه د نړۍ نورو برخوته لېږي. بايد وويل شي چې ددغو هېوادونو په صنعتي کېدو کې د بهرنيو هېوادو، په تېره بيا د جاپان پانګه ډېره اغيزه لري.

۸۶- شکل







پنبه: د ځمکې له محصول څخه بيا تر وروستي صنعتي شوي محصول پورې

## د صنایعو ډولونه:

په ټولیزه توګه صنایع په دوو برخوویشل کیږي: سپک صنایع او درانه صنایع.

**- سپک صنایع**: هغه صنایع دي چې د هغو بنسټ په نیمه صنعتي محصولاتو یا د هغو په اجزاوو باندې ولاړ وي او کوم وروستي تولیدات چې ورڅخه ترلاسه کیږي، په سیده توګه د خرڅلاو بازارته وړاندې کیږي چې د هغو ښه بیلګه د خوراکي توکو، نساجي او لباس، دخرمنی او نور صنایع دي.

**- درانه صنایع**: هغه دي چې د هغو بنسټ په ډیرو کاني یا ځمکنیو خامو توکو، لکه: د ډبرو سکاره، فلزات او اومه نفتو باندې ولاړ وي او معمولاً نیمه صنعتي تولیدات لري چې بیاوروسته د نورو شرکتونو په وسیله ورځنې پوره پاخه او صنعتي توکي جوړیږي لکه د پولادو جوړولو صنعت، د نفت چاڼ او د کیمیایي توکو صنایع.




۸۷- شکل: د امریکا د متحده ایالاتو د تولیداتو هغه ډولونه چې په دغه هېواد کې زیات تولیدیږی

دلته د بیلګې په توګه د یو شمېر سپکو او درنو صنایعو نومونه اخلو:

| | |
|---|---|
| - د خوراکي توکو صنایع | - د نفتو او د ډبرو سکرو صنایع |
| - د جامو او اوبدلو صنایع | - د کیمیایي محصولاتو صنایع |
| - د څرمنو صنعت | - د ربړ او نورو محصولاتو صنایع |
| - د لرګیو او د هغو اړوندو څانګوصنایع | - دښیښې جوړولو، سمنټواونورومحصولاتو صنایع |
| - کاغذ جوړول او د هغو اړوند محصولات | - د فلزاتو صنایع |
| - د ماشینونو صنایع | - د موټر، الوتکې، بیړۍ جوړولو او نورې صنایع |
| - د بریښنا د وسایلو صنایع | - موبل صنایع او نور |



## د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په دوه کسیزو ډلو کې د لوست د متن، نقشو او تصویرونو په کتنې سره لاندېنیو پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

۱ـ د صنعت په سکتورکې د کار نقشه وګورئ، وویاست چې:

الف. په ۲۰۰۱ م کال کې په المان، اتریش، ایټالیا، هسپانیې، مراکش، د سهیلي افریقا هېواد او جاپان کې په سلوکې څومره وګړي د کانونو او صنعت په سکتور کې په کار بوخت وو؟

ب. د همدې نقشې له مخې په روسیه، مکسیکو، او ارجنټاین کې په سلوکې څومره وګړي د صنعت او کانونو په سکتور کې په کار بوخت وو؟

ج. د همدې نقشې له مخې په روسیه، مکسیکو او ارجنټاین کې په سلوکې څومره وګړي د صنعت او کانونو په سکتور کې په کار بوخت وو؟

۲ـ د امریکې د متحده ایالاتو د محصولاتو نقشه و ګورئ، که لاندینی پوښتنې سمې وي د (س) په توري او که ناسمې وي د(ن) په توري یې په خپلو کتابچو کې په نښه کړئ.

الف. د امریکې په متحده ایالاتو کې د الوتکو جوړولو اووه کار خانې شته (      ).

ب. د بېړۍ جوړولو ټول کارځایونه او کارخانې، د نوموړي هېواد د سمندرونو په غاړه جوړ شوي دي.(      )

ج. د امریکې په متحده ایالاتو کې د موټر جوړولو پنځه کارځایونه شته. (      )



## پوښتنې:

۱ـ د صنایعو ارزښت توضیح کړئ.

۲ـ سپک صنایع کوم دي؟ په یوې بیلګې سره یې واضح کړئ.

۳ـ درانه صنایع کوم دي؟ د هغو یوه بیلګه هم وړاندې کړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د ورکړل شوې بیلګې څخه په کار اخیستلو سره هغه جملې چې یو له بلې سره اړیکې لري په خپلو کتابچو کې سره ونښلوئ:

| | |
|---|---|
| ۱. د خوراکي توکو صنایع | الف. دګنډلو ماشین |
| ۲. د جامو اوبدلو صنایع | ب. د پراستامول ګولی |
| ۳. د فلزاتو صنایع | ج. شکره |
| ٤. د کاغذ او د هغه اړونده محصولاتو صنایع | د. د څرمنې بوټان |
| ٥. کیمیاوي صنایع | هـ. د لوست کتابونه |
| ٦. د ماشینونو صنایع | و. د کوټې لپاره کوچ او څوکۍ |
| ۷. د څرمنو صنایع | ز. جامې |
| ۸. د موبل صنایع | ح. د اوسپنې ګول سیخان |

## ۳،۶ د صنايعو په پرمختګ کې اغيزمن لاملونه (عوامل)



۸۸- شکل: د مکسيکو د خليج د ساحل تصوير چې د کيمياوي صنايعو د ساحل په نوم هم يادېږي.

### کوم لاملونه د صنايعو په رامنځ ته کيدو او د هغو په پرمختګ کې اغيزمن دي؟

څرنګه چې ددغه لوست او تېر لوست په تصويرونو کې ښکاري، کيفيت لرونکي صنعتي محصولات له بيلابيلو کرنيزو، څارويو او له کاني محصولاتو او نورو څخه جوړېږي. په دې وروستيو کې د صنعت په ډګر کې د تکنالوژۍ په پرمختګ سره ګړندۍ وده راغلې ده.

ډېر داسې لاملونه شته چې د صنايعو په رامنځته کيدو او د هغو په پرمختګ باندې اغېزه لري، مخکې له دې څخه چې يوه فابريکه او کارځای کارخانه جوړه شي، بايد د هغې خاوند يا جوړوونکی دغه ډول لاملونه وڅېړي او په پام کې يې ونيسي چې وکولای شي خپل کارخانې او فابريکې ته ډېر ښه ځای غوره کړای شي او دهغې له نورو پرمختګونو څخه ډاډمن شي.




۸۹- شکل

لکه څرنګه چې په تصویر کې ښکاري، هغه لاملونه چې د صنایعو په ځای پرځای کیدو او پرمختګ کې اغیزه لري، دوه ډولونه لري: طبیعي او بشري.

**۱) طبیعي لاملونه**: هغه طبیعي لاملونه چې د صنایعو په رامنځته کیدو او پرمختګ باندې اغیزه لري لومړني توکي، انرژي او ځمکه ده چې دلته په لنډیز سره توضیح کیږي:

• **لومړني توکي**: د صنایعو په رامنځته کولو او د هغو د راتلونکې پرمختیاو لپاره لومړني توکي د لوړ ارزښت لرونکي دي، خو د یوې فابریکې د ځای په غوره کولو کې د هغو اغیزمنتوب را ټیټ شوی دی، دا ځکه چې هغه صنایع چې پخوا به د لومړنیو موادو سرچینو ته نژدې جوړیدې، نن ورځ د حمل او نقل د وسایلو په پرمختګ سره هغو ته نژدې نه جوړیږي او دا لامل هرومرو په پام کې نه نیول کیږي، خو بیاهم یو شمېر صنایع لکه د اوسپنې د ویلي کولو صنایع د هغو د دروندوالي له امله او دخوراکي توکو صنایع او د هغو د ژر خرابیدو له امله کانونو او کروندو ته نژدې جوړیږي.

• **انرژي**: یو بل هغه لامل چې د صنایعو په رامنځ ته کیدو او پرمختیا کې اغیزه لري هغه انرژي ده. پخوا به یو شمېر صنعتي موسسات په هغو ځایونو کې جوړیدل چې هلته به د ډبرو سکاره یا رواني اوبه وې، لکه د انګلستان په لانکشایر او یورکشایر کې د رخت اوبدلو صنایع، خو وروسته بیا د ډبرو سکرو ځای چې درانه وو او د لیږدولو لګښتونه یې ډیر اوچت وو د نفت او ګازونو انرژي ونیوو. همدارنګه د بریښنا انرژي رامنځ ته شوه چې د انرژۍ یو ډیر مهم ډول دی او د صنعتي موسساتو د ځای په غوره کولو کې یې ډیره اساني راوستله، دا ځکه چې لرې پرتو صنعتي کار ځایونو ته هم د بریښنا لیږدول کیدای شي.

• **ځمکه**: د یوه صنعتي کارځای د جوړولو لپاره باید ځمکه ولرو. لومړنی فابریکې به معمولا په کوچنیو ټوټو او اوارو ځمکو کې جوړیدلې، خو د فابریکو په پرمختیا او پراخوالي سره او د هغو د شمېر په زیاتیدو سره هواره او پراخو ځمکوته اړتیا لازیاته شوه. د یوې فابریکې د ځای په غوره کولو کې به ښه وي چې د ښارو او ناکرنیزو ځمکو څخه کار واخېستل شي ځکه چې ارزانه وي او کرنه په کې نه کیږي.



۹۰- شکل د غوښې د صنایعو د فابریکې یو تصویر

۲) **بشري لاملونه**: کاري ځواک، پانګه، د خرڅلاو بازار او حمل او نقل هغه لاملونه دي چې د صنایعو په ځای پرځای کیدو او پرمختیا کې اغیزه لري چې دلته د هریوه په هکله خبرې کوو:

• **کاري ځواک**: ښکاره خبره ده چې کار ځواک د صنعت د رامنځته کیدو، ځای غوره کولو او پرمختیا لپاره یو مهم عامل دی او له دوو خواوو یعنې د کمیت (د کارګرانو د شمېر) او کیفیت (مهارت او تخصص) له پلوه ارزښت لري. پخوا به د کارګرانو شمېر ډېر ارزښت درلود، خو نن ورځ د صنایعو په ماشیني کولو سره، کارګرانوته اړتیا ورځ په ورځ کمیږي، خو د هغوی مهارت او تخصص لوړ ارزښت پیداکوي.

• **پانګه**: د یوه صنعتي کارځای لپاره د ځمکې د اخېستو، د ماشینونو، لومړنیو توکو، د کارګرانو د حق طرحې او نورو لګښتونو د پوره کولو په خاطر باید پوره پیسې وي. پخوا وختونو کې به خلکو شخصا د صنعتي کارځای (کارخانې) په جوړولو لاس پورې کاوه، خو نن ورځ بانکونه او دولت پور ورکوي او د هغوی لپاره پانګه برابروي.

• **د خرڅلاو بازار**: داهم د صنعتي تولیداتو د پلورلو لپاره یو مهم لامل دی چې د صنایعو په پرمختګ کې ارزښت لري. بېلا بېلې سیمې د ګټې د اندازې، د مالونو دبیو، د خرڅلاو د اندازې او اجناسو او مالونو ته د اړتیا له مخې یو له بل سره توپیر لري. صنعتي هېوادونه هڅه کوي چې د خپلو تولیداتو لپاره زیات او پراخه بازارونه ومومي او په دې توګه زیاته ګټه ترلاسه کړي. له همدې امله د صنایعو خاوندان د مشتریانو د موندلو په خاطر او د خرڅلاو په بازار د لاسبري لپاره سوداګریز اعلانونه او تبلیغات پرمخ بیایي.

• **حمل او نقل**: د صنعتي لیږد رالیږد موسسو د لومړنیو اړتیا وړ



۹۱- شکل: د امریکا د متحده ایالاتو په د تروېت ښار کې د موټر جوړولو تصویر. په دغه ښار کې د موټر جوړولو لوېې کارخانې لکه فورډ او جنرال هم شته دي.

توکو د ډاډمن کیدوپه خاطر او د خرڅلاو بازار ته د تولید شوو توکو د رسولو لپاره مواصلاتي لارې او د لیږدولو وسایلوته اړتیا ده چې دا د صنایعو په رامنځته کیدو او پرمختیا کې ډیر مهم ارزښت لري.


۹۲- شکل: په کلیفورنیا کې د سیلیکان د ناوې (وادي) تصویر چې زیاتره سپک صنایع لري. لکه د بریښنا صنایع

لکه چې وویل شول، د لیږدولو د وسایلو غوره کول د اجناسو یا مالونو په دروندوالي، د لارې اوږدوالی، د مالونو د زیانمن کیدو او نورو پورې تړلې ده.

## د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي د خپل ښاغلي ښوونکي په لارښوونه دې د هغو طبیعي او بشري لاملونو په هکله خبرې وکړي چې د صنایعو په رامنځته کیدو او پرمختیا کې اغېزمن دي او د خپلو خبرو پایله دې په ټولګي کې ووایي.

## پوښتنې:

۱ـ کوم طبیعي لاملونه د یوې فابریکې د جوړولو د ځای په غوره کولو او د صنعت په پرمختیا اغېزه لري؟ د هغو اغیزې د یوې بیلګې په وړاندې کولو سره توضیح کړئ.

۲ـ د صنایعو په پرمختیا کې د بشري لاملونو لکه د کارځواک، پانګې، د خرڅلاوبازار او لېږد را لېږد رول توضیح کړئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د امکان په صورت کې دیوې فابریکې له خاوند سره یوه مرکه وکړئ او د لاندېنیو پوښتنو ځوابونه راټول، هغه وڅېړئ او بیایې په ټولګي کې وړاندې کړئ:

۱ـ د فابریکې ځای (موقعیت) د کومو ټاکونکو لاملونو له مخې غوره شوی دی؟

۲ـ د دغه صنعتي کارځای خام یا لومړني توکي له کومه کیږي او څرنګه رالیږدول کیږي؟

۳ـ د فابریکې پانګه او کارځواک په څه ډول چمتو شوي دي؟

٤ـ تولید شوي اجناس چیرته پلورل کیږي او دهغو د لیږدولو اسانتیا څرنګه ده؟

۵ـ د خپلې فابریکې له کار څخه خوښ یاست؟ د خپلې خوښۍ یا ناخوښۍ لامل څرګند کړئ.

## اووم څپرکی

# سوداګري او ګرځندويي

### په دې څپرکي کې لولو:

• نړېواله سوداګري او د هغې اهميت
• نړېواله سوداګري

ـ د سوداګريزو راکړو ورکړو حجم
ـ آزادې سوداګريزې سيمې او د هغو مفهوم
ـ د نړېوالې سوداګرۍ سازمان

• ګرځندوی (توريزم) او نړېوال اهميت يې
ـ د نړۍ مهمې ګرځندويي سيمې او هېوادونه
ـ د توريزم د راښکون (جذب) سرچينې
ـ د توريزم نړيوال سازمان
ـ د لېږد را لېږد ډولونه
ـ سيالي (رقابتونه)
- نړيوال لېږد را لېږد او دهغه اهميت

## د څپرکي عمومي هدفونه:

**زده کوونکي به د دغه څپرکي په لوستلو سره لاندېنيو پوهنيزو موخوته ورسيږي:**

- د نړيوالې سوداګرۍ په اهميت به ويوهيږي.
- د نړۍ په کچه د جنسونو او مالونو د سوداګرۍ مهمې لارې به وپيژني او بيان به يې کړي.
- د سوداګرۍ آزادې سيمې به وپيژني.
- د سوداګرۍ له نړيوال سازمان او کړنو سره به بلد شي.
- ګرځندوی او د هغه نړيوال اهميت به وپيژني.
- مهم توريستي هېوادونه او سيمې به وپيژني.
- د ګرځندوی د جذبولو لارې چارې به وپيژني.
- د نړۍ په کچه لېږد را لېږد او دهغه مهم وسايل به وپيژني.

**زده کوونکي به د دغه څپرکي په لوستلو سره لاندېنيو مهارتي موخو ته ورسيږي:**

- د نړيوالې سوداګرۍ اهميت به بيان کړي.
- په نړۍ کې د سوداګرۍ لارې (تګ لارې) به په نښه کړای شي.
- د سوداګرۍ ازادې سيمې به وپيژندلای شي.
- د سوداګرۍ نړيوال سازمان او د هغه دندې به بيان کړي.
- د ګرځندوی اقتصادي اهميت به وويلای شي.
- د نړۍ د ګرځندوی مهم هېوادونه او سيمې به وښودلای شي.
- د ګرځندويانو د جذبولو مهمې لارې ـ چارې به وښودلای شي.
- ددغه څپرکي له نقشو څخه به ډېر غوره کار واخېستلای شي.

# ۱، ۷ نړيواله سوداګري او د هغې اهميت




۹۳- شکل: چين د کارګرانو د ټيټ مزد او د خرڅلاو د لوی بازار له امله وکړای شول چې د زيات شمېر نړيوالو شرکتونو د څانګو پاملرنه را واړوي.

نړيواله سوداګري د نړۍ د وګړو د ژوند د کچې په لوړېدوکې څه رول لري؟

تاسې د افغانستان په برخه کې د سوداګرۍ له مفهوم څخه خبر شوئ. لکه چې وويل شول سوداګري د اجناسو او خدماتو تبادله کول دي چې د دوو لورو (وګړو، ډلو، هيوداونو) ترمنځ ترسره کيږي.

په اوسني وخت کې دغه سوداګريزې راکړې ورکړې معمولاً په پيسو تر سره کيږي.

په عمومي توګه په ټوله نړۍ کې څلور ټکي د سوداګريزې او د مالونو د ليږدولو په برخه کې مهم دي:

۱) **په نړۍ کې د څمکنيو توکو وېش**: يو شمېر هېوادونه لکه جاپان، خام يا څمکني توکي ډېر لږ لري، نو دوی بايد هغه د نړۍ له نورو هېوادونو څخه وارد کړي.

۲) **نژديوالی**: د بيلګې په توګه د افغانستان سوداګري زياتره له نژدې او ګاونډيو هېوادونو سره ده.

۳) **د لاسبرۍ وړتيا**: ښې او غوره لارې په لويو سيمو باندې لاسبری اسانه کوي. د بيلګې په توګه: د انګلستان او فرانسې ترمنځ تر اوبو لاندې د تونل له جوړولو وروسته يعنې له ۱۹۹۵ م کال څخه وروسته د سوداګريزو اجناسو ليږدول تريخوا زيات شول.

۴) **د پرمختيا د کچې درجه**: د سوداګريزو اجناسو ډېره زياته راکړه ورکړه د پرمختللو هېوادونو ترمنځ ترسره کيږي.

هغه اجناس او مالونه چې د نړۍ په سوداګرۍ کې ډېر مهم دي، معمولاً درې ډوله دي:؛

• **څمکني توکي**: دا هغه ډول محصولات دي چې لا صنعتي شوي نه وي او خام توکي هم ورته ويل کيږي لکه مالوچ چې په تصوير کې ښکاري.؛

• نيم صنعتي شوي توکي: هغه څمکني توکي چې په هغو باندې کار شوي وي او بڼې او څرنګوالی يې بدلون موندلی وي لکه رخت چې له مالوچو څخه جوړشوی دی.

• وروستی محصول : هغه مواد یا محصولات چې ټول صنعتي او توليدي پړاوونه يې تېر کړي وي لکه هغه دسمالونه او جامې چې له ټوکر څخه جوړ شوي دي او په انځور کې ښکاري.

له دې امله چې په شلمه پيړۍ کې د اجناسو او محصولاتو لېږدول د پخوا په پرتله ډېر ارزانه او اسانه شول، د نړۍ د بېلابېلو هېوادونو ترمنځ سوداګري هم لازيات ارزښت موندلی دی چې دا په خپله د نړيوال کيدو Globalization يو مهم شکل دی.

نړيوال کيدل يا ګلوباليزيشن د نړيوالې سوداګرۍ د پرمختيا او همدارنګه له آسيا څخه د اروپا خواته د لېږدولو د ترانسپورت د زياتيدو لامل شوی ده. په دې وروستيو کلونو کې د نړۍ سوداګري ډيره فعاله شوې ده، په تېره بيا د آسيا لويديځې نړۍ ترمنځ سوداګري ډيره پرمخ تللې ده. لکه څرنګه چې په انځور کې ښکاري د اسيا سوداګري به په راتلونکی کې هم له لويديځ سره لازياته شي، دا له دې کبله چې اوس د اروپا په پرتله په اسيا کې د کارګرانو مزد ډېر لږدی، نوځکه د زياترو اروپايي شرکتونو څانګې او استازي په آسيايي هېوادونو کې کارکوي او صنعتي شوي محصولات له اسيا څخه لويديځې نړۍ ته، په تېره بيا اروپاته استول کيږي.

اوس ختيځه اروپا هم د اقتصادي او د سوداګريزې ودې په حال کې ده او له آسيا څخه به ډېر صادرات ترلاسه کړي.

سره د دې چې نړيواله سوداګري د خلکو داړتياوو د پوره کيدو او د هېوادونو د پرمختګ لامل کيږي او د خلکو د ژوند دکچې په لوړيدو کې مهم ارزښت لري، خو د يو شمېر نويو ستونزو د راپيداکيدلو لامل هم کيږي، له دغه ستونزو څخه يوه يې د ترانسپورت له امله د چاپېريال ککړتيا ده د ترانسپورت په زياتيدو سره ورځ په ورځ د ژوند چاپېريال اغيزمن کيږي، د اقليم د بدلون، د ترافيک د ډيرې ګڼې ګوڼې او د ناوړه غږ زوږ او شور ماشور لامل کيږي.

په لنډه توګه ويلای شو چې سوداګري د وګړو او ټولنو د اقتصاد په پياوړتيا کې لوی ارزښت لري او د دريم سکتور يعنې خدماتو يوه مهمه برخه ده. په ننني نړۍ کې د هغو هېوادونو د خلکو د ژوندکچه اوچته ده چې د هغو زيات شمېر وګړي د خدماتو په سکتور کې بوخت دي، د ژوندکچه يې هم اوچته ده.

**د ټولګي دننه فعاليت**:

د لوست متن او تصويرونه ورو ولولئ او د ستونزمنو ټکو په هکله له ښوونکي څخه پوښتنه وکړئ.

**پوښتنې**:

۱. نړيوال کيدل يا ګلوباليزيشن له سوداګرۍ سره څه اړيکې لري؟ توضيح يې کړئ.
۲. د نړيوالې سوداګرۍ اهميت په څه کې دی؟
۳. ستاسو له نظره کوم هېوادونه د نړۍ په سوداګرۍ کې ډيره برخه لري؟

**له ټولګي څخه بهر فعاليت**

د نړيوالې سوداګرۍ او د نوموړي ارزښت په هکله د بېلابېلو سرچينو څخه په ګټې اخيستنې يو مخيزه مقاله وليکئ.

## ۲،۷ نړیواله سوداګري

### الف ـ د سوداګریزو راکړو ورکړو حجم




۹۴- شکل

د لوست نقشو او تصویرونو ته وګورئ د نړۍ کوم هېوادونه او کومې سیمې په نړیواله سوداګرۍ کې ډېره برخه لري؟

د سوداګریزو جنسونو ډېره زیاته راکړه ورکړه د پرمختللو هېوادونو ترمنځ ترسره کیږي. داسې ویل کیږي چې څومره یوه سیمه پرمختللې وي، هومره یې په نړیواله سوداګرۍ او ترانسپورت کې ونډه زیاته وي. لکه څرنګه چې په شکل کې ښکاري د نړۍ په سلوکې ۲۰ بډای هېوادونه د نړۍ په سلوکې ۷۵ عایدات، په سلوکې ۸۵ صادرات او په سلوکې ۷۵ د تلیفونونو لینونه په واک کې لري، په داسې حال کې چې د نړۍ په سلوکې ۲۰ بېوزله هېوادونه د نړۍ یوازې په سلوکې یو عایدات، په سلوکې یو صادرات او په سلوکې ۱،۵ د ټیلیفونونو لینونه لري. د نړۍ بېوزلو هېوادونو پخوا یوازې د خامو یا ځمکنیو توکو له صادرولو څخه یوڅه پیسې ترلاسه کولې، خو بډایو هېوادونو د صنعتي ـ پخو جنسونو له پېرودلو څخه ګټه ترلاسه کوله، خو دغه کار د نړۍ د بیوزلو هېوادونو په زیان و داځکه چې د خامو یا ځمکنیو توکو له خرڅلاو څخه ډېرې لږې پیسې په لاس راتلې. په اوسني وخت کې پرمختیایي هېوادونه هم هڅه کوي چې د خپلو صادراتي مالونو شمېر زیات کړي او اوس یو زیات شمېر پرمختیایي هېوادونه خپل صنعتي محصولات لکه جامې د برېښنا وسایل او نور صادروي. همدارنګه پرمختیایي هېوادونه داهڅه هم کوي چې خپل ځمکني یا خام توکي په خپلو هېوادونو کې صنعتي اوبیایې صادر کړي.




۹۵- شکل: په اقتصاد، صادراتو او د تیلفون په کرښو کې د نړۍ د بډایو او بېوزلو هېوادونو ونډه.

## د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي، د لوست نقشه دې په ځير سره وګوري او لاندیني فعالیتونه دې ترسره کړي:

۱ـ د وريجو په توليد او سوداګرۍ کې د نړۍ کومې دوه سيمې ډيره برخه لري او په دغو دوو سيمو کې د وريجو ټول توليد په ۲۰۰۵ م کال کې څو ميليون ټنه وو؟

۲ـ کومو دوو سيمو په ۲۰۰۵ م کال کې د غنمو يو برابر توليد درلود او د کومو سيمو ترمنځ د هغو سوداګري د اوبو له لارې ترسره کيده؟

۳ـ په همدې کال کې کومو دوو سيمو ډير زيات کبان توليد کړي وو او اندازه يې څومره وه؟

٤ـ ستاسې په فکر د نړۍ کومه لويه وچه د خوراکي توکو د توليد له پلوه د نړۍ تر ټولو بېوزله سيمه ده او لامل يې څه دی؟

## پوښتنې:

۱ـ بېوزلو يا پرمختيايي هېوادونو پخوا څه ډول توکي صادرول؟

۲ـ ستاسې له نظره د نړۍ کوم بډای هېوادونه په سوداګرۍ کې ډيره ونډه لري؟

۳ـ د کوم ډول محصولاتو صادرول ډيره ګټه لري؟ خام که صنعتي شوي توکي، ولې؟ توضيح يې کړئ.

## له ټولګي څخه بهر فعاليت:

ددغه لوست متن او نقشې وګورئ، د هغو مهم ټکي زده کړئ او که ستونزې يا پوښتنې وي هغه په بل ساعت کې له خپل ښاغلي ښوونکي څخه وپوښتئ.

## ب ـ آزادې سوداګریزې سیمې او دهغو مفهوم




د (ګډکار) په I او II نقشو کې کوم سازمانونه او اقتصادي ټولنې تر سترګو کیږي ؟

د نړۍ هغه سیمې او هېوادونه چې په هغو کې آزاده سوداګري ترسره کیږي او د آزاد بازار سوداګریز سیاست یې غوره کړی، د آزادو سوداګریزو سیمو مفهوم لري، خوپه حقیقت کې ازاده سوداګري هغه سوداګري او راکړه ورکړه ده چې پرته له هر ډول پولې او خنډ څخه ترسره شي. د هېوادونو کورنۍ سوداګري معمولاً په آزاد ډول پرمخ ځي، خو نړېواله سوداګري د یو شمېر خنډونو اوپولو سره مخامخ ده لکه: ګمرکي مالیات، سرحدي مقررات او نور.

د آزادې سوداګرۍ نظریه پر دې بنسټ ولاړه ده چې سیاسي او نور نا طبیعي مقررات د نړۍ د بېلابېلو سیمو ترمنځ سوداګري او راکړه ورکړه محدوده نه کړي، ازاده سیالي وشي، هره سیمه او برخه دې د هغو جنسونو او مالونو په تولید کې تخصص ترلاسه کړي کوم چې دوی یې د نورو سیمو پرتله اسانه او ارزانه تولیدولای شي اوپه دې توګه د تولیدي سیمو یو ډول طبیعي غوره کول او وېش رامنځته کیږي او د جنسونو اخېستونکي کولای شي د خپلې اړتیا وړ جنسونه ارزانه او په ښه توګه ترلاسه کړي،

خو د نړۍ هېوادونه د خپلو ملي صنایعو د ملاتړ او پیاوړتیا په خاطر او د خپلو داخلي تولیداتو د ښه کولو په خاطر یو ډول ځانګړی ګمرکي مالي او سوداګریز سیاست غوره کوي.

د نړۍ په ځینو سیمو کې لکه د اروپایي ټولنې په شان د ټولنې د غړو هېوادونو ترمنځ سوداګري پرته له ګمرکي او سرحدي محدودیتونو څخه پرمخ ځي:

### ج ـ د سوداګریزو سیمو وېش:

لکه چې مخکې هم وویل شول، په شلمه پیړۍ کې د سوداګریزو مالونو لیږدول آسانه او ارزانه شول، همدارنګه د نړۍ یو شمېر هېوادونه په سوداګریزو ټولنو او سازمانونو کې یو د بل ترڅنګ ګډ کار کوي او هغه خنډونه چې د

سوداګري د پرمختګ مخه نيسي، له منځه وړي. سوداګري په ټوله نړۍ کې لوړ ارزښت مومي او څه ناڅه د نړۍ ټولې سيمې اوس په سوداګرۍ کې ونډه اخلي. خو بيا هم د نړۍ يو شمېر سيمې په نړيواله سوداګرۍ کې د نورو په پرتله زياته برخه لري چې په دې کې لويديځه اروپا، شمالي امريکا، د اسيا ختيځ او جنوب ختيځ، فارس د خليج هېوادونه، پخواني شوروي اتحاد او ختيځه اروپا د يادولو وړ ده چې د نړۍ ډېرې لوېې او مهمې سوداګريزې سيمې يې جوړې کړې دي.



۹۹- شکل

## د ټولګي دننه فعاليت:

زده کوونکي دې په ډلو وويشل شي (د تجارتي ترافيک) نقشه دې ولولي، لاندينی دندې دې ترسره او د خپل کار پايلې دې له خپلو ټولګيوالو سره ګډې کړي.

١. په نقشه کې څو مهمې سوداګريزې سيمې ګورئ؟ د هغو نومونه واخلئ.

٢. په ٢٠٠٣ م کال کې په کومه سيمه کې ډېر لوی سوداګريز ترافيک ليدل کيږي او ارزښت يې څو مليارده يوروته رسيږي؟

٣. په همدې کال کې د کومو سيمو ترمنځ ډېر زيات سوداګريز مالونه وړل راوړل شوي دي او د هغو ټوله بيه څو مليارده يورو شوې وه؟

٤ـ په نړيواله سوداګرۍ کې د خليج او افريقايي هېوادونو ونډه پرتله کړئ او د هغو ترمنځ توپير توضيح کړئ.

## پوښتنې

١ـ د يو څو مهمو سوداګريزو سيمو نومونه واخلئ.

٢ـ د نړۍ د کومو سيمو ترمنځ ډېر زيات سوداګريز مالونه ليږدول کيږي؟

٣ـ ولې په نړيواله سوداګرۍ کې د نړۍ پرمختللي هېوادونه مهمه ونډه لري؟

## له ټولګي څخه بهر فعاليت:

د دغه لوست I او II د ګډ کار نقشې ولولئ، اقتصادي ټولنې او سازمانونه د هغو له اړونده هېوادونو سره لېست کړئ او همدارنګه وليکئ چې افغانستان د کومو اقتصادي سازمانونو غړی دی.

# د ـ د نړيوالې سوداګرۍ سازمان




۱۰۰- شکل

ولې نړيوالو د نړيوالې سوداګرۍ د سازمان جوړولوته اړتيا درلوده؟

نړيوال سوداګريز سازمان (World Trade Organization (WTO د ۱۹۹۵ م کال د جنوري په لومړۍ نيټه جوړ او مرکزي دفتر يې په ژينو کې دی. د نړيوالې سوداګرۍ سازمان (WTO) له جوړېدو څخه مخکې د General Agreement on Tariffs and Trade (GATT) ياد سوداګري او ګمرکي تعرفو د عمومي پريکړه ليک په نوم يو بل موافقه ليک په ۱۹٤۷م کې په ژينو کې د ۲۳ غړيو هېوادونو له خوا لاسليک شوی و چې وروسته د نړيوالې سوداګرۍ سازمان د هغه ځای ونيو. د نړيوالې سوداګرۍ د سازمان دندې نړيوالې سوداګرۍ ته پرمختيا ورکول، د سوداګريزو ستونزو حل کول او د سوداګريزو خنډونو له منځه وړل دي. دغه سازمان د ۱٤۹ غړو او د ۳۰ وياړلي غړو په لرلو سره وکولای شول چې په ۲۰۰۲ م کال کې د نړۍ د ټولې سوداګرۍ په سلوکې له ۹۵ برخو څخه استازيتوب وکړي. د نړيوالې سوداګرۍ سازمان له خپلو جوړېدو څخه شل مياشتې وروسته ۱۲۲ غړي لرل، خو په ۲۰۰۷ م کال کې يې د غړو شمېر ۱۵۰ ته ورسيد.

د نړيوالې سوداګرۍ د سازمان د جوړيدو اصلي مفکوره داده چې نړيواله سوداګري د نړۍ د سوکالۍ د پرمختګ لپاره يوه ډېره غوره لاره ده، نو څکه بايد د نړيوالې سوداګرۍ له مخې ټول خنډونه لرې شي.

د نړيوالې سوداګرۍ په سازمان کې نه يوازې دا چې د جنسونو او مالونو د سوداګرۍ په اړه خبرې او پريکړې

کېږي، بلکې د ملکيتي حقونو او خدمتونو په هکله هم خبرې او پرېکړې کېږي.

د نړيوالې سوداګرۍ د سازمان په داخلي جوړښت کې، ددغه سازمان غړي د نړيوالې سوداګرۍ د ازادۍ او اسانتياوو په اړه پرېکړې کوي او تصميم نيسي چې بايد پر ټولو غړو يوشان تطبيق شي. ددغه سازمان د دفتر ترڅنګ چې په ژينو کې دی، يوه بله شورا هم شته چې د عمومي شورا (General Council) په نوم يادېږي. دغه شورا د غړيو هېوادونو له سفيرانو يا استازيو څخه جوړه ده.له دې پرته څو نورې کاري ډلې هم لري لکه د مالونو شورا (Goods Council)، د خدمتونو شورا (Services Council) او د علمي ملکيتونو شورا (Intellectual Property Council) چې دا ټول تل په فعاليت او خبرو اترو بوختي وي او ددغه سازمان د وزيرانو کنفرانس ته چې معمولاً په هرو دوو کلونو کې يوځل دايرېږي چمتوالی نيسي.

د نړيوالې سوداګرۍ په سازمان باندې نيوکې هم شته او هغه داچې ځينې وخت ددغه سازمان پرېکړې د ټولو غړو هېوادونو په ګټه نه وي، په تېره بيا پرمختيايي هېوادونه په ډېرو ستونزو سره کولای شي چې د لويديځو پرمختللو هېوادونو په بازارونو کې د خپلو مالونو د خرڅلاو امکانات برابر کړي.

### د ټولګي دننه فعاليت:

د نړيوالې سوداګرۍ د سازمان نقشه وګورئ، لاندېنيو پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ:

۱ـ د آسيا د لويې وچې کومو هېوادونو د نړيوالې سوداګرۍ د سازمان له جوړېدو سره سم د هغه غړيتوب درلود؟

۲ـ د افغانستان او د دريو نورو هغو هېوادونو چې په ژېړ رنګ ښودل شوي دي نوم واخلئ او د هغوئ دريځ بيان کړئ.

### پوښتنې:

۱ـ د نړيوالې سوداګرۍ سازمان په کوم کال جوړ شو او دهغه مرکزي دفتر چيرې دی؟

۲ـ د نړيوالې سوداګرۍ د سازمان مهمې دندې کومې دي؟ توضيح يې کړئ.

۳ـ د نړيوالې سوداګرۍ د سازمان مثبت او منفي اړخونه کوم دي؟

### له ټولګي څخه بهر فعاليت:

افغانستان په دې وروستيو کې د نړيوالې سوداګرۍ د سازمان غړيتوب ترلاسه کړی که نه؟ که يې ترلاسه کړی دی، څه وخت په کومو شرايطو؟ په دې اړه معلومات راټول او په ټولګي کې يې ووایاست.

# ګرځندویي (توریزم) او نړیوال اهمیت یې




۱۰۱- شکل: په نړۍ کې د ګرځندویانو د جذب ور مهمې سیمې او په امریکايي میلیارد ډالرو باندې په ۲۰۰۲ م. کال کې له هغو څخه تر لاسه شوي عواید

د نړۍ د ګرځندوی نقشې ته وګورئ او ووایئ چې کوم هېواد په ۲۰۰۲ م کال کې له ګرځندوی څخه ډېر زیات عواید تر لاسه کړئ وو؟

ټول هغه فعالیتونه چې خلک یې د وزګارتیا پرمهال ترسره کوي او لږ تر لږه له یوې شپې ورځې څخه تر یو کال پورې له کورڅخه بهروي ګرځندویي بلل کیږي، په دې توګه ګرځندوی (توریست) هغه څوک دی چې د خپل اوسیدو له ځای څخه بهر کوم ښار یا هېواد ته له یو کال څخه کم او له یوې شپې ورځې څخه د زیات وخت لپاره ولاړشي او موخه یې په وزګار وخت کې دمه، ګرځېدل، سپورت، مذهبي فعالیتونه، علمي کتنې او نور وي.

نن ورځ په نړۍ کې ګرځندویي په یو مهم صنعت اوښتي ده او څه ناڅه په هرو پنځلسو تنو کې یو تن د ګرځندویي په سکتور کې کار کوي، همدارنګه هر کال په نړۍ کې ۷۰۰ میلیونه تنه د خپلو رخصتیو د تېرولو په خاطر بهرنیو هېوادونو ته ځي. په دې وروستیو کې د نړۍ خلک په تېره بیا د پرمختللو هېوادونو خلک له پخوا څخه زیات ګرځي او د نړۍ ډېرو لېرې سیموته ورځي چې لاملونه یې د ډېرو پیسو لرل، د ژوند او د دمې او تفریح د وسایلو ښه کیدل او د لیږدولو د وسایلو پرمختګ دی.

هغه سیمې چې هلته گرځندویان ورځي، باید ځانگړې په زړه پورې والی ولري او د گرځندویانو هیلې پوره کړي. په دې توگه زیاتره دولتونه دا هڅه کوي چې په خپلو هېوادونو کې د گرځندویي د پراختیا او ودې په خاطر امکانات برابر کړي.

گرځندویي عموماً اقتصادي او کلتوري اهمیت لري. د هغې اقتصادي ارزښت په دې کې دی چې کولای شي له دوو لارو څخه د پرمختیایي هېوادونو اقتصادي ودې سره مرسته وکړي.

**- د عایداتو زیاتوالی**: کله چې گرځندویان او سیلانیان یوه هېوادته ورځي، اړ دي چې هلته د خپلو خوړو او اوسیدلو په خاطر هوټلونو، میلمستونونو، ترانسپورت، د سیل ځایونو، لکه: پارکونو، موزیمونو او نوروته پیسې ورکړي او همدارنگه یو شمېر سوغاتونه او سامانونه واخلي چې پرته له شکه دهماغه هېواد په اقتصاد غوره اغیزه کوي.

**د کار او بوختیا چمتو کول**: یوه هېوادته د گرځندویانو د پاملرنې او د گرځندوی د صنعت د پرمختیا په خاطر باید ډېر ښه امکانات لکه میلمستونونه، هوټلونه، د اوسیدو ځای او نور، د ژوند اسانتیاوې لکه ترانسپورت، د گرځیدو وسایط او نور چمتو شي.

ددې لپاره چې دولتونه دغه امکانات چمتو کړای شي باید په دغو ټولو برخو کې کار وشي چې دا په خپله د کار د پیداکیدو لپاره لاره اواروي.

### د ټولگي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په څلورو ډلو وویشل شي: لومړۍ ډله دې د نړۍ د گرځندوی نقشه وگوري او د امریکې د لوېې وچې د څلورو هېوادونو د نړیوالو گرځندویانو شمېر او د هغو کلني عواید دې د نقشې له مخې وټاکي او و دې لیکي، دویمه ډله دې په آسیایي څلورو هېوادونو دریمه ډله دې په افریقا او څلورمه ډله دې په اروپاکې څلور داسې هېوادونه چې نښې یې پورته وښوول شوې ولیکي او هره ډله دې د خپل کار پایله په ټولگي کې وړاندې کړي.

### پوښتنې:

۱- کوم لاملونه دي چې نن ورځ په نړۍ کې خلک لېرې لېرې سیموته توریستي سفر کوي او د هغوئ شمېر تر پخوا زیات شوی دی؟

۲- د نړیوال گرځندوی اقتصادي ارزښت توضیح کړئ.

۳- د گرځندویي کلتوري اهمیت په څه کې دی ؟ توضیح یې کړئ.

### له ټولگي څخه بهر فعالیت:

له کتابتون او انټرنټ څخه په کار اخېستنې سره د نړیوال گرځندوی مثبت او منفي اړخونه په یوه پاڼه کې ولیکئ.

## الف ـ د نړۍ مهمې ګرځندوی (توریستي) سیمې او هېوادونه



۱۰۲- شکل: د پاریس د ښار یوه ښندنه چې د نړۍ ګرځندویانو ته له کلتوري پلوه ځانګړې ارزښت لري.

ګرځندوی هغې سیمې یا هېواد ته ورځي چې هلته یوڅه وي چې د دوی په خپله سیمه کې نه وي. له دې امله چې ټول هېوادونه او ټولې سیمې د ګرځندوی لپاره یوشان او کټ مټ شرایط نه لري او بیلابیل امکانات لري. له همدې امله یوه سیمه د بلې نیمګړتیا بشپړوي او ګرځندویان ځان ته رابولي.

هغه سیمې چې هلته تر اوسه تر ټولو زیات ګرځندویان ورځي اروپا او شمالي امریکا ده.

یوه ګرځندوی ته واټن د یوې توریستي سیمې د ټاکلو لپاره ډېر مهم دی، څومره چې د توریستي سیمې موقعیت لیرې وي، هومره هلته ګرځندویان لږ ورځي. زیاتره ګرځندویان له پرمختللو هېوادونو څخه وي او پرمختللو هېوادونو ته سفر کوي. اوس په پرمختیایي هېوادونو کې هم توریزم او ګرځندوی د پرمختیا په حال کې دی چې لاندیني لاملونه ورباندې اغیزه لري.

۱. د حمل او نقل وده او پراختیا.

۲. زیاتره وخت پرمختیایي هېوادونه ګرځندویانو ته په زړه پورې وي، دا ځکه چې دغه هېوادونه غوره هوا او په زړه پورې طبیعت لري، له بلې خوا یو ګرځندوی په لږ لګښت سره هلته خپلې ورځې تېرولای شي.

۳. د پرمختیایي هېوادونو دولتونه هڅه کوي چې د خپلو هېوادونو د اقتصاد د ودې لپاره په ګرځندویي

سیمو کې ښه والی راولي او د ګرځندویانو پام ورته را واړوي.
لکه څرنګه چې په تېر لوست کې د نړۍ په توریستي نقشه کې ولیدل شول، ښکاري چې په نړۍ کې توریستي سیمې ډېرې زیاتې ډول ډول او بېلا بېلې دي چې دلته به یې له ځینو سیمو سره آشنا شو.

• **اروپا**: مرکزي، جنوبي او جنوب لویدیځه اروپا د مدیترانې د سیمې په ګډون د نړۍ د ګرځندوی ډیرې مهمې سیمې دي. ددغې سیمې هېوادونه هر کال له ګرځندوی څخه زیات شمېر ګټې او لوړ عاید ترلاسه کوي. د مدیترانې د سمندرګي لمر لرونکې غاړې او په زړه پورې هوا په اوړي کې د لامبو، موټر ځغلولو، سپورتي راز راز لوبو او د آس ځغلولو لپاره ډېره غوره ده. همدارنګه لوی تاریخي ښارونه لکه پاریس، لندن، روم، مادرید او د آلمان او هالنډ یو شمېر ښارونه او نور د تیاترونو، سینماګانو او هنري نندارو، موزیمونو، تاریخي ودانیو، په زړه پورې پارکونو او د موسیقي جشنونو له پلوه، په تېره بیا په اوړي کې د ګرځندویانو او سیلانیانو لپاره ډېر په زړه پورې دي او د نړۍ له هر ګوټ څخه ورته ګرځندویان ورځي.
د اتریش او سویس هېوادونه د الپ د غرونو په لړۍ کې د ژمنیو سپورتونو په برخه کې د ډېر غوره خدمتونو



۱۰۳- شکل: په یوه ساحل کې د ګرځندویانو او هغوی ته د اسانتیاوو تصویر

او اسانتیاوو په لرلو سره په اروپا کې د ګرځندوی مهم ژمني مرکزونه دي.

• **آسیا**: دغه لویه وچه چې په حقیقت کې د لویو دینونو او تمدنونو زانګو ده په نړۍ کې د ګرځندوی لپاره غوره سیمې لري. منځنی ختیځ په نړۍ کې مذهبي توریستي لویه سیمه ده. مکې معظمې ته د حج پرمهال د نړۍ ډېر زیات حاجیان او زیارت کوونکي ورځي. همدارنګه چین، ترکیه، اندونیزیا، هند او یو شمېر نور هېوادونه هم د ګرځندوی د په زړه پورې سیمو په لرلو سره هر کال د نړۍ د ګرځندویانو پاملرنه ځان ته را اړوي.



۱۰٤- شکل: په یوه غرنۍ سیمه کې د ګرځندویانو یوه کوچنۍ ډله

د جګړو له کلونو څخه مخکې زموږ هېواد ته چې د ډېرې غوره هوا، ارزښتمنو کلتوري او تاریخي آثارو، تاریخي او مذهبي ودانیو او نورو غوره طبیعي منظرو لرونکی دی ګڼ شمېر ګرځندویان هم راتلل چې په تېرو لوستونو کې ولوستل شول.

• **شمالي امریکا**: د امریکا متحده ایالات او کاناډا د طبیعي بیلابیلو منظرو، لکه: ملي پارکونو، ژوبڼونو، لمر لرونکو تودو سواحلو او کلتوري سیمو، او موزیمونو په لرلو سره د ګرځندویانو د پام وړ هېوادونه دي. په دې وروستیو کلونو کې مکسیکو، د جنوبي او مرکزي امریکې یو شمېر نور هېوادونه هم د ملي طبیعي پارکونو او کلتوري مرکز ونو په لرلو سره د ګرځندویانو د پام وړ ګرځیدلي دي. د یادولو وړ ده چې

په افریقا کې هم د ګرځندوی لپاره د پام وړ سیمې او هېوادونه شته لکه د مصرهېواد چې مهم تاریخي آثار لري او د کینیا او جنوبي افریقا هېوادونه هم یادولای شو.

## د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په څلورو ډلو وویشل شي، د نقشې تصویرونو او د لوست د متن په لوستلو سره دې لاندینۍ دندې ترسره او د هغو پایلې دې په ټولګي کې وړاندې کړي:

- لومړۍ ډله دې د نړۍ د ګرځندوی مهمې سیمې او هېوادونه لېست کړي.
- دویمه ډله دې هغه سیمې ولیکي چې لمر لرونکي تاوده سواحل لري او د ګرځندوی د پاملرنې وړ ګرځېدلي دي.
- دریمه ډله دې د هغو هېوادونو او سیمو نومونه ولیکي چې د ژمنیو سپورتونو لپاره د ګرځندویانو د پام وړ دي.
- څلورمه ډله دې د نړۍ د هغو نامتو ښارونو نومونه ولیکي چې تاریخي او کلتوري ارزښت لري او د ګرځندویانو د پاملرنې وړ ګرځي.

## پوښتنې:

لاندینۍ جملې ولولئ او تش ځایونه یې په خپلو کتابچو کې په مناسبو کلمو ډک کړئ:

۱. د ژمنیو سپورتونو لپاره ډېر ښه او هوسا خدماتي امکانات د (          ) په غرونو کې د (          ) او (          ) په هېواد کې شته.

۲. (          ) په نړۍ کې یوه لویه مذهبي توریستي سیمه ده.

۳. زیاتره ګرځندویان د (          ) هېوادونو دې او (          ) هېوادونو ته ځي.

٤. هغه لاملونه چې په پرمختیایي هېوادونو کې د ګرځندوی (توریزم) د پرمختګ سبب کیږي (          ) (          ) او (          ) دي.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

له مجلو، ورځپاڼو، مسافري شرکتونو، خپلو دوستانو او خپلوانو څخه د ګرځندوی او یا ګرځندویې سیمې یو ډېر په زړه پورې تصویر ترلاسه او د هغه په هکله په بل راتلونکي لوست کې خپلو ټولګیوالو ته معلومات ورکړئ.

## ب ـ د توریزم د راښکون (جذب) سرچینې



۱۰۵- شکل: په هسپانیا کې کلتوري توریزم

کومې سرچینې په نړۍ کې د ګرځندویانو د جذب وړ ګڼل کېدای شي؟

هغه سرچینې چې په نړۍ کې د توریستانو د جذب لامل ګرځي، هغه طبیعي، کلتوري او تاریخي سرچینې دي چې په لنډه توګه یې در پېژنو:

**۱. طبیعي سرچینې:** د نړۍ ځینې سیمې ډېرې ساحې لري چې د توریست د پاملرنې وړ ګرځي لکه په اوړي کې اروپا، مرکزي امریکا، جنوبي امریکا، د جنوب ختیځې آسیا او استرالیا د سیندونو، جهیلونو او سمندرګیو غاړې.

غرنۍ سیمې، په تېره بیا هغه غرونه چې هلته دژمنیو لوبو او سپورتونو امکانات شته لکه په اتریش او سویس کې الپ او نورې هغه سیمې چې غوره طبیعي ساحې لري. همدارنګه په افریقې، امریکې اونورو ځایونو کې طبیعي پارکونه ګرځندویانوته په زړه پورې دي.

**۲. تاریخي او کلتوري سرچینې:** هغه تاریخي او کلتوري ښارونه او سیمې چې پخوانۍ ودانۍ، پړې (تنې، جسدونه) موزیمونه، ننداړتونونه او فرهنګي مرکزونه لري د ګرځندویانو پاملرنه ځانته اړوي لکه د اروپا، امریکا، اسیا او افریقې مشهور او نامتو ښارونه.

سپیڅلو ځایونو لکه مکې معظمې ته هر کال ډېر زیات شمېر مسلمان زیارت کوونکي د نړۍ له بیلابیلو برخو څخه ورځي او هغو زیارتونو او عبادت ځایونو ته هم ډېر ګرځندویان ورځي چې د نړۍ په بیلابیلو برخو کې شته دي.

**ج. د توریزم نړیوال سازمان:** د توریزم یا ګرځندوی نړیوال سازمان The World Tourism Organization چې د ملګرو ملتونو د سازمان په اړانه کې کارکوي، یو ځانګړی سازمان دی چې د ګرځندوی په برخه کې ټولې نړیوالې ستونزې اواروي.

د ګرځندوی د نړیوال سازمان لومړنۍ لویه غونډه د هسپانیې د هېواد په بلنه د ۱۹۷۵ م کال د می په میاشت کې د هغه هېواد د مادرید په ښارکې جوړه شوه، او روبرت لوناتي Robert Lonatie ددغه سازمان لومړنی رئیس وټاکل شو.

د یادونې وړ ده چې د ګرځندوی له نړیوال سازمان څخه مخکې یو شمېر نور سازمانونه او ټولنې وې چې د ګرځندوی په برخه کې یې کار کاوه او وروسته بیا نوموړي سازمان د هغوئ ځای ونیو. په اوسني وخت کې د نړۍ ۱۶۱ هېوادونه او سیمې د ګرځندوی د نړیوال سازمان غړیتوب لري چې ۳۹۰ ساحوي مرکزونه لري، همدارنګه دغه سازمان شپږ سیمه ییز کمیسیونونه لري چې په افریقې، امریکې، ختیځې آسیا او پسفیک، اروپا، منځنی ختیځ او جنوبي آسیا کې فعالیت کوي، دګرځندوی نړیوال سازمان لویه یا عمومي غونډه په هرو دوو کلونو کې یوځل جوړېږي او رئیس یې د څلورو کلونو لپاره ټاکل کیږي. د نوموړي سازمان رسمي ژبې عربي، انګلیسي، فرانسوي، روسي او هسپانوي دي. افغانستان په ۱۹۷۵م کال د دغه سازمان غړیتوب ترلاسه کړی دی.

### د ټولګي دننه فعالیت:

زده کوونکي دې په ډلوویشل شي او د خپل ښاغلي ښوونکي له لارښوونې سره سم دې د دوو موضوعګانو (دګرځندوی د جذب یا راښکون سرچینې او نړیوال ګرځندوی سازمان) په هکله دې بحث وکړي او د خپل بحث پایله دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

### پوښتنې:

ـ لاندینۍ پوښتنې که صحیح وي په (س) او که غلطې وي په (ن) توري په خپلو کتابچو کې په نښه کړئ:

۱. په اوړي کې د جنوبي اروپا او جنوب لویدیځې اروپا هېوادونه د مدیترانې د سمندرګې د تودو او لمر لرونکو غاړو په لرلو سره د زیات شمېر ګرځندویانو د پاملرنې وړ ګرځي ( )

۲. په ژمي کې اتریش او سویس د هغو کسانو لپاره چې د الپ په غرونو کې د لوبو د ترسره کولو لیوالتیا لري غوره ځای دی( )

۳. طبیعي پارکونه دګرځندویانو د پاملرنې یا جذب له تاریخي او کلتوري سرچینو څخه شمېرل کیږي ( )

٤. له دې امله چې افغانستان غوره کلتوري او طبیعي سرچینې نه لري، نو څکه تر اوسه د نړۍ د زیات شمېر ګرځندویانو د پاملرنې وړ نه دی ګرځیدلی. ( )

۵. د ګرځندوی نړیوال سازمان د شپږو کمیسیونو له ډلې څخه درې یې په اسیاکې په کار بوخت دي ( )

### له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د افغانستان او نړۍ د ګرځندوی په هکله لوستونه ولولئ د هغو د متن، تصویرونو او نقشو څخه په کار اخیستنې سره لاندېنیو پوښتنو ته ځواب ورکړئ.

۱. د نړۍ خلک ولې په سیاحت (توریزم) باندې لاس پورې کوي؟

۲. په ترتیب سره د نړۍ د هغو پنځو هېوادونو نوم واخلئ چې د (توریزم) ګرځندوی څخه تر ټولو زیات عاید ترلاسه کوي.

۳. د نړۍ د ګرځندوی د نامتو او مشهورو سیمونو مونه واخلئ.

٤. د ګرځندوی مثبت او منفي اړخونه کوم دي.

۵. د درې طبیعي او درې کلتوري سرچینونوم واخلئ چې په افغانستان کې به د ګرځندویانو د پاملرنې سبب شي.

## ۴ ، ۷ نړیوال حمل اونقل او دهغه اهمیت



۱۰۶- شکل: په هالنډ کې د روتردام لوی سمندري بندر

د حمل او نقل اصطلاح څه مفهوم لري؟

د خلکو، انرژي،مالونو او معلوماتو لېږدولوته حمل او نقل وايي.

د دوو سيمو ترمنځ د معلومات ليږدولوته اړيکې Communication ویل کیږي. که چیرې یوازې د شیانو، مالونو او انرژۍ لېږدول په پام کې وي، نو دې ته ترانسپورت Transport ویل کیږي. هغه لیږدوونکي وسایط چې خلک نژدې ځایونوته ورې راوړي، په حقیقت کې د خلکو یا د وګړو لیږدوونکي نقلیه وسایل بلل کیږي.

آیا تاسې کله په خپل ژوند کې د مالونو دلیږدولو د ارزښت په هکله سوچ کړی دی؟

مخکې تر دې چې یو جنس ستاسو ترکور پورې ورسیږي، باید له ډیرو ځایونو څخه تر ډیرو ځایونو پورې ولیږدول شي. د بیلګې په توګه: که یو بوتل یا دغوړیو یو پیپ په پام کې ونیسو هغه توکي

چې بوتل او پيپ ورځخه جوړېږي او هغه بوټې چې غوړي ورځخه جوړېږي له بيلابيلو ځايونو څخه رالېږدول کېږي، کله چې بوتل يا پيپ ورته جوړشو، بيا غوړي جوړېږي، په کې اچول کېږي، هغه بيا پلورنځيو ته لېږدول کېږي او وروسته بيا بايد ستاسې کورته ولېږدول شي، دا ټول د لېږدولو راليږدولوغوښتنه کوي. په دې توګه ويلای شو چې لېږدول راليږدول د بشري ټولنو د اړتياوو په پوره کولو کې لويه ونډه لري. د يادونې وړ ده چې حمل او نقل په ټولو هېوادونو کې دخلکو د ميشت کيدو پرځايونو، د فابريکو لپاره د ځايونو په غوره کولو، د مارکيټونو د ځای په ټاکلو، د شرکتونو، دفترونو، صنعتي مرکزونو او تاسيساتو د ځايو په غوره کولو کې ډېره اغيزه لري. د بېلګې په توګه د ترانسپورت د ډېرو زياتو لګښتونو د مخنيوي لپاره ځينې فابريکې د خامو توکو يا لومړنيو موادو ته نژدې ځايونو کې جوړېږي، خو ځينې نورې د پلورنې ځايونو او بازارونو ته نژدې جوړېږي.

حمل او نقل په اوسني وخت کې چې د نړۍ د بيلابيلو هېوادونو ترمنځ اړيکې ډېرې پراخې شوي دي، د پام وړ پراختيا موندلې ده. هغه (عوامل) چې نړيوال حمل او نقل ته يې وده ورکړې ده دادي:

- **د نفوسو زياتوالی**: زيات وګړي د ګڼ او زيات ترانسپورت غوښتنه کوي.
- په بشري ټولنو کې پرمختګونه او بدلونونه: د نړۍ په ګڼ شمېر هېوادونو کې د خلکو غوښتنې ډېرې زياتې شوي او خلک د پخوا وختونو پرتله زياتي ورځنی کاري او تفريحي بوختياوې لري او له ترانسپورت څخه استفاده کول زيات شوي دي.
- **داقتصاد وده**: د عايداتو زياتوالی ددې لامل شوی چې ترانسپورتي وسايل زيات شي. په پرمختللو هېوادونو کې زياتره خلک خپل شخصي موټر لري، همدارنګه د جنسونو لېږدول ـ راليږدول هم ډېر شوي دي.
- **سيمه ييز ه پرمختيا**: په ځينو بشري پرمختللو ټولنو کې خلک د خپل کار له ساحې څخه لرې ژوند کوي چې د هغوی تګ راتګ هم د ترانسپورت د پرمختيا لامل شوی دی.
- **د ترانسپورتي لارو او کرښو ښه کيدل**: ښې لارې لېږدول را لېږدول اسانه کوي، زياتره هېوادونو هڅه کړې چې لويو لارو او ترانسپورتي کرښو ته ښه پرمختيا ورکړي او په هغو کې ښه والی راولي چې داهم د حمل او نقل په زياتيدو کې اغيزه لري.

د يادونې وړ ده چې زيات لېږدول ـ راليږدول ستونزې هم ډېروي چې يو شمېر دغه ستونزې په دې

توګه دي:

۱. د ژوند د چاپېريال ککړتيا: ترانسپورتي وسايل په خپلو لوګيو، لوخړو او ګازونو لکه Nitrogen Dioxide دوړو او خاورو باندې هوا ککړوي او د ژوند چاپېريال بوين او له غږ زوږ څخه ډکوي.

۲. د زياتو وسايلو له امله ځيني وخت لارې بندي او د ترانسپورتي وسايلو ګڼه ګوڼه ددې لامل کيږي چې خلك او مالونه په وخت اړينو ځايونو ته ونه رسيږي.

۳. نا امني: زيات ليږدول-راليږدول تر اوسه هم د ترافيکي ناوړه پيښو لامل کيږي چې له دې امله يو شمېر خلك خپل ژوند له لاسه ورکوي.

٤. په ترانسپورتي لارو او کرښو باندې ډيرې ښې حاصل ورکوونکې ځمکې نيول کيږي.



۱۰۷- شکل: د توکيو په ښار کې يوه د اوسپنې پټلی.



## د ټولګي دننه فعالیت

دوه دوه زده کوونکي دې یوځای سره کار وکړي، یو دې لوست د متن، تصویرونو او خپلو شخصي معلوماتو څخه په ګټه اخېستو سره حمل او نقل معرفي کړي او په دې هکله دې مهم ټکي په یوه پاڼه کې ولیکي. دویم زده کوونکی دې د لیږدولو ـ رالیږدولو، د هغه د اسانتیاوو او هغو ستونزو په هکله چې د ترانسپورتي وسایلو له امله پیداشوي دي په یوه پاڼه کې لیکنه وکړي او د ټولګي په مخ کې دې ولولي.



## پوښتنې:

۱. کوم لاملونه د نړیوال د لېږد رالېږد د پرمختیا لامل شوي دي، نوم یې واخلئ او توضیح یې کړئ.

۲. سره له دې چې لیږدول – رالیږدول زموږ په ژوند کې ډېر زیات اهمیت لري، خو کومې ستونزې یې رامنځته کړي ؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

په خپلو کتابچو کې د څلور ستونو لرونکی یو جدول رسم کړئ:

۱. په لومړي ستون کې د هغو خوراکي توکو نومونه ولیکئ چې پرون مو خوړلي وو.

۲. په دویم ستون کې د هغه هېواد نوم ولیکئ چې احتمالا نوموړي خوراکي توکي ورڅخه وارد شوي دي.

۳. په دریم ستون کې د اطلس یا نقشې په کتو سره هغه اټکلي واټن ولیکئ چې ستاسو له خوا لګول شوي خوراکي توکي له هغه ځایه رالیږدول شوي دي.

## څلور پنځوسم لوست

# الف ـ د حمل او نقل ډولونه



۱۰۸- شکل: په سینګاپور کې د سمندري ترانسپورت انځور

تاسې څو ډوله ترانسپورت پیژنئ او په خپله مو له کوم یو څخه کار اخېستی دی؟

لېږد را لېږد د هوا له لارې په الوتکې، د اوبو (سمندرونو، سمندرګیو او سیندونو) له لارې د بېړۍ او په وچه کې د موټر او اورګاډي په وسیله ترسره کیږي. هر ډول ترانسپورتي وسایل او د هغو اړونده کرښې خپلې ځانګړتیاوې لري. د لېږد را لېږد یو شمېر وسایل کولای شي هرڅه ولیږدوي، یو شمېر نور یوازې دیو څوځانګړو محصولاتو د لیږدولو لپاره غوره دي. د حمل اونقل د یو شمېر وسایلو ګړندیتوب ډیر لږ خو د یو شمېر نورو زیات دی. د هر ډول ترانسپورتي وسایلو لپاره یوې زیربنا ته اړتیا ده چې هغه دادي: لویې لارې، پاخه سړکونه، د اوسپنې پټلۍ، هوایي ډګرونه. مصنوعي سپوږمۍ، سمندري بندرونه، ترمینلونه. نل لیکې (پایپ لاینونه) اونور.

که چیرې یو شمېر سیمې یا ښارونه د ترانسپورتي کرښو په واسطه سره ونښلول شي، یو ډول ترانسپورتي سیستم یا د لېږد را لېږد سیستم ورڅخه جوړیږي.

لاندینی جدول د لېږد را لېږد ډولونه او بیلابیل سیستمونه ښکاره کوي.

( ۷ ) جدول: د لېږد را لېږد بیلابیل سیستمونه

| ترانسپورتي شبکه | ترانسپورتي وسیله | هغه جنسونه چې لیږدوي یې |
|---|---|---|
| د برېښنا شبکه | الکترون | د برېښنا انرژي |
| د اورګاډي کرښې | اورګاډی (ریل) | مالونه او وګړي |
| (د سړکونو (شبکه | د سورلیو او باروړلو موټر | مالونه او وګړي |
| د اوبو لارې | ډول ډول بیړۍ | مالونه او وګړي |
| هوایي کرښې | الوتکې | مالونه او وګړي |
| بد رفت سیستم | بد رفت | ناولې اوبه (فاضلاب) |
| د اوبو د لیږدولو شبکه | د اوبو نل لیکه (پایپ لاین) | د څښلو پاکې اوبه |
| دګاز د لیږدولو شبکه | دګاز نل لیکه (پایپ لاین) | ګاز |
| د ټیلیفون شبکه | الکترون یا پروتون (الکترونیکي څپې، نوري او غږیزې څپې) | غږیز پیغامونه، لیکنې او انځوریز پیغامونه |
| مرکز ګرمي | د تودوخې د لیږدولو نل لیکې | تودوخه |

## ب . سیالي (رقابتونه)

د یوې ترانسپورتي وسیلې په غوره کولو کې بیلابیل لاملونه اغیزه لري لکه بیه، بارول، تشول، واټن، د مالونو اندازه او دروندوالی او نور.

په دې وروستیو وختونو کې د ترانسپورتي وسیلې په غوره کولو کې سیالي زیاته شوې او شرکتونه له ترانسپورت څخه زیاتې هیلې لري.

پخوا به د یوې وسیلې په غوره کولو کې د لیږدولو بیې ډیر ارزښت درلود، خو په اوسني وخت کې د یوې ترانسپورتي وسیلې په غوره کولو کې یو شمیر نور ټکي لکه ډاډمن لیږدول، لومړیتوب لري، خو بیاهم د لیږدولو بیه اوس هم د وسایلو په غوره کولو کې مهمه ده. د مالونو او جنسونو ډول هم د ترانسپورتي وسیلې د ډول په غوره کولو کې اغیزه لري. د بیلګې په توګه د یو شمیر محصولاتو د لیږدولوله پاره

چې باید د خرڅلاو ځای ته په خپل وخت ورسول شي او د هغو د خرابیدو مخنیوی وشي د ګړندي ترانسپورت غوره کول مهم دي. د قیمتي او ښکلو شیانو د لیږدولو لپاره د لیږدولو بیه لومړیتوب نه لري، خو په ډاډمنه توګه یې ورل مهم دي. په دې توګه لیدل کیږي چې د ترانسپورت بېلابېل ډولونه یو له بل سره په سیالۍ کې دي او مشتریان دا غواړي چې خپلې بېلا بېلې غوښتنې د ترانسپورټي وسیلې په غوره کولو سره ترلاسه او په پام کې ونیسي.



۱۰۹- شکل

##  د ټولګي دننه فعالیت

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو وویشل شي، د لوست د متن، تصویرونو، او جدول په کتنې سره دې لاندینۍ دندې ترسره او دخپل کار پایله دې په ټولګي کې وړاندې کړي:

۱. هغه ترانسپورت چې د هوا له لارې ترسره کیږي په هغې کې د لېږد را لېږد کوم ډول وسایل او زیربنایي اړتیا بلل کیږي، له بیلګو سره یې لست کړئ.

۲. هغه ترانسپورت چې د اوبو له لارې ترسره کیږي د لېږد را لېږد کوم ډول وسایل او کوم ډول زیربنایي امکانات ورته اړین دي له بیلګې سره یې ولیکئ.

۳. هغه ترانسپورت چې په وچه ترسره کیږي د کومو نقلیه وسایلو او زیربنایي امکاناتو لرونکی دي له بیلګو سره یې ولیکئ.

##  پوښتنې:

۱. څو ډوله ترانسپورټي سیستمونه پیژنئ، نوم یې واخلئ.

۲. ترانسپورت له کوم ډول سیالۍ سره مخامخ دی او کوم لاملونه د ترانسپورت په غوره کولو کې اغیزه لري؟ توضیح یې کړئ.

##  له ټولګي څخه بهر فعالیت:

ستاسي نظر د لېږد را لېږد د بیلابیلو ډولونو او دهغو د ځانګړتیاوو لکه ګړندیتوب، بیه، ورتیا او نورو په هکله څه دی، په یوه پاڼه کې یې ولیکئ او خپل ښوونکي ته یې ښکاره کړئ.